



**د پوهنې وزارت**
د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د
روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست


# د ښوونکي کتاب
# د ټولنیزو لوستونو د تدریس لارښود
# څلورم ټولګی




د چاپ کال: ۱۳۹۵ هـ. ش.


د ټولنیزو لوستونو د تدریس لارښود
څلورم ټولګی





unicef
د هر ماشوم لپاره
برای هر طفل






**د پوهنې وزارت**
د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د
روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تألیف لوی ریاست

# د ښوونکي کتاب

# د ټولنیزو لوستونو د تدریس لارښود

## څلورم ټولګی

**د چاپ کال**: ۱۳۹۷ هـ.ش



**مؤلفان**:

- سرمؤلف نجیب الله « امین افغان»
- د سر مؤلف مرستیال محمد رفیق «مومند»
- پوهنیار محمد فاروق «عمرخیل»
- مؤلف غلام سرور «گلاب زی»

**مسلکي اډیټور**:

- د سر مؤلف مرستیال قدیم شیرزی «بابکرخیل» د ټولنیزو علومو د بخش آمر.

## دیني ،سیاسي او فرهنګي کمیټه

- حبیب الله "راحل "د تعلیمي نصاب د پراختیا په لوی ریاست کې د پوهنې وزارت سلاکار.

## د څارنې کمیټه:

- دوکتور اسدالله محقق د تعلیمي نصاب، د ښوونکو د روزنې او د ساینس مرکز معین.
- دوکتور شیر علي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې مسؤول.
- د سرمؤلف مرستیال عبدالظاهر ګلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی رئیس.

**کمپوز او ډیزاین:**

**الماس ظفری او عبدالقاهر صمیمی**





# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، ګوجر دي — پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي — هم ایماق، هم پشه یان
دا هیواد به تل ځلیږي — لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به — لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مو دی رهبر — وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم

**د پوهنې د وزیر پیغام**

د لوی خدای ﷻ ډېر شکر دی چې انسان یې په احسن تقویم کې پیدا او هغه ته یې د خبرو کولو توان ورکړ او د علم او فکر پر ګاڼه یې سمبال کړ. ډېر درود دې وي د اسلام پر ګران پیغمبر حضرت محمد مصطفی ﷺ چې د انسانیت ستر ښوونکی دی او د رحمت، لارښوونې او روښنایي پیغام راوړونکی.

ښوونه او روزنه په هره ټولنه کې د بدلون او پراختیا بنسټ دی. د ښوونې او روزنې اصلي موخه د انسان د بالقوه ځواکونو فعالول او د هغه د پټو استعدادونو غوړول دي.

درسي کتاب د ښوونې او روزنې په بهیر کې یو مهم رکن بلل کیږي چې له نوو علمي بدلونونو او پرمختګونو سره اوږه په اوږه د ټولنې له اړتیاوو سره سم تالیف کیږي. درسي کتابونه باید د منځپانګې له مخې خورا بډای وي چې وکړای شي د علومو له نوو لاسته راوړنو سره مل دیني او اخلاقي زده کړې د نوو میتودونو له لارې زده کوونکو ته ولیږدوي.

دغه کتاب چې اوس ستاسو په واک کې دی، د همدغو پورته ځانګړنو پر بنسټ چمتو او تالیف شوی دی. د پوهنې وزارت تل زیار باسي چې په هیواد کې تعلیمي نصاب او درسي کتابونه د اسلامي ښوونې او روزنې او د ملي هویت د ساتلو پر بنسټ جوړ او له علمي معیارونو، نوو روزنیزو میتودونو او د نړۍ له علمي پرمختګونو سره سم چمتو کړي. د زده کوونکو استعدادونه په ټولو اخلاقي او علمي خواوو کې وغوړیږي او په هغوی کې د تفکر او نوښت توان او د پلټنې حس پیاوړی کړي. د خبرو اترو او پیرزوینې د فرهنګ دودول، د هیواد پالنې او د مینې او محبت د حس پیاوړی کول، ښښنه او پیوستون د پوهنې د وزارت نورې غوښتنې دي چې ښایي د لوست په کتابونو کې ورته پام وشي.

درسي کتابونه د ښه او مسلکي ښوونکي له درلودو پرته نشي کولای ټاکل شوي موخې ترلاسه کړي. ښوونکی د ښوونې او روزنې یو مهم جزء او د ښوونې او روزنې د پروګرامونو پلي کوونکی دی. د هیواد له ژمنو او زړه سواندو ښوونکو څخه، چې د تورتم او ناپوهۍ په وړاندې یې جګړه خپله دنده ګرځولې، دوستانه هیله لرم د تعلیمي نصاب په دقیق او مخلصانه تطبیق کې د هیواد ماشومان، نجونې او تنکي ځوانان د پوهې، اخلاقو او معنویت لوړو څوکو ته ورسوي.

د هیواد د زده کړې د نظام برۍ د خلکو له جدي مرستو پرته امکان نه لري. له دې امله له ټولو قشرونو او د ملت له شریفو خلکو، په تیره بیا له کورنیو او د زده کوونکو له درنو اولیاوو څخه هیله لرم چې د معارف د موخو د لاسته راوړو په برخه کې له هیڅ ډول مرستې څخه ډډه ونه کړي. دغه راز له ټولو لیکوالو، پوهانو، د ښوونې او روزنې له ماهرینو او د زده کوونکو له محترمو اولیاوو څخه هیله کیږي چې په خپلو رغنده نظرونو، وړاندیزونو او نیوکو د درسي کتابونو په لاښه والي کې د پوهنې له وزارت سره مرسته وکړي.

لازمه بولم له ټولو ښاغلو مؤلفانو، د پوهنې وزارت له اداري او فني کارکوونکو او له ملي او نړیوالو بنسټونو څخه، چې د دغه کتاب په چمتو کولو، چاپولو او ویش کې یې زیار ایستلی او مرسته یې کړې، مننه وکړم.

په پای کې له لوی خدای ﷻ څخه غواړم چې په خپله بې پایه مهربانی له موږ سره د پوهنې د سپیڅلو ارمانونو په لاسته راوړلو کې مرسته وکړي. انه سمیع قریب مجیب.

**د پوهنې وزیر**

**دوکتور اسدالله حنیف بلخي**



# فهرست

**عنوان........................................................................................................مخ**







ز

## (لومړی) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | ټولنیز ژوند | |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د ټولنیز ژوند په مفهوم پوه شي. | |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>● د ټولنیز ژوند له مفهوم سره به بلدشي.<br>● ټولنیز ژوند به تشریح کړای شي.<br>● له ټولنیز ژوند سره به یې مینه پیدا شي. | |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... | |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه... | |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... | |
| لومړني فعالیتونه او د انگیزې رامنځته کول | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ، د ټولګي تنظیم او د حاضرۍ اخیستل.<br>**د انگیزې پیدا کول:**<br>په لاندنیو انځورونو کې څه شی وینئ؟ | وخت<br>۱۰دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ښاغلی ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>-د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br><br>- وروسته څو تنو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br><br>-زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي هغه دې د تختې پرمخ ولیکي او | - زده کوونکي د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په ځیر سره غوږ نیسي.<br><br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنی کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | **۳۵دقیقې** |



| | | |
|---|---|---|
| معنی دې کړي.<br>– لوست تشریح کوي.<br>– له ځو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>– زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د ټولنیز ژوند په اړه خبرې وکړي.<br>– د ارزونې په موخه د کتاب له پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>– لوست دې را لنډ کړي او د لوست د متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | – په غوره سره غوږ نیسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>– د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱– ټولنیز ژوند دا معنا لري چې یو شمېر انسانان په یوه جغرافیایي ټاکلې سیمه کې ژوند کوي، چې ګډ دین، تاریخ، دودونه او رواجونه لري.

۲– په انځور نوکې د اړتیاو د پوره کولو لپاره په بازار کې اخېستل او خرڅول او د چاپېریال د زرغونیدلو لپاره د نیالګیو کېنولو ګډ کار ښودل شوی دی.

۳– موږ باید په خپلو کې د دوستۍ اړیکې ولرو.

## اضافي معلومات

**انسان** یو ټولنیز موجود دی، انساني نسلونو د خپل پیدایښت څخه تراوسه په ډله ییزه توګه ژوند او فعالیت کړی دی، د ژوند په بېلابېلو برخو کې د بشري ټولنو اوسني پرمختګونه د ډله ییزو کارونو محصول دی.

تجربو ښودلي ده چې د ګډو فعالیتونو په پایله کې د ژوند ستونزمنې مسلې حل شوي دي، په مقابل کې فردي ژوند او فردي کارونه، نه یوازې ستونزې حل کولی نه شي بلکې ستونزې زیاتوي.

د اسلام په روښانه دین کې د ټولنیز ژوند اهمیت واضح او روښانه دي. د اسلام دین حکم کوي چې انسانان باید په چارو کې مشوره وکړي، لکه څرنګه چې الله (جَلّ جَلالُه) فرمایلي دي:

**(وَأَمْرُهُم شورىٰ بَيْنَهُم)** ژباړه: او د هغوی کار په خپلو کې مشوره کول دي، څرنګه چې انسانان د فزیکي جوړښت له مخې په خپلو کې توپیر لري، نو له فکري پلوه هم یو له بل سره توپیر لري. په پای کې ویلی شو، هر کله چې د ځو کسانو نظرونه سره را ټول شي، قناعت ښبونکو او مثبتو پایلو ته رسیږي.

## (دویم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | کورنۍ | |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د کورنۍ په مفهوم پوه شي. | |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>• د کورنۍ ژوند له مفهوم سره به بلدشي.<br>• تشریح به کړای شي چې کورنۍ له کوموکسانو څخه جوړه شوې ده.<br>• له کورنۍ ژوند سره به یې مینه پیداشي. | |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه اوډله ییزفعالیت... | |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، د کورنۍ څو انځورونه ... | |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... | |
| لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ ، د ټولګي تنظیم ، د حاظرۍ اخستل ، د کورنۍ دندې لیدل ،د تیر لوست څخه پوښتنې او له نوي لوست سره تړاو ورکول.<br>**د انګیزې پیدا کول**<br>- ستاسو په اند ، په کورنۍ کوم کسان ژوند کوي؟ | وخت<br>۱۰دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکي د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br><br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br><br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br><br>- کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ | - زده کوونکي د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br><br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو | **۳۵ دقیقې** |

| | | |
|---|---|---|
| وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې د کورنۍ په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې لپاره د لوست پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست د متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- په ډلوويشل کيږي او له لارښونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br><br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- کورنۍ د ما شومانو د زده کړې او روزنې لومړنی ځای دی.

۲- پر موږ لازمه ده چې د مور، پلار او مشرانو درناوی وکړو.

۳- اولادونه له مور، پلار، خويندو او ورونو څخه د ژوند ادبونه زده کوي.

## اضافي معلومات

**کورنۍ**

کله چې له تاسو څخه پوښتنه وشي چې په ژوند کې مو لومړی کوم کسان پېژندلي دي؟ نومونه يې واخلئ. ستاسو ځواب به څه وي؟ سم له لاسه ځواب ورکوئ چې: مور، پلار، خويندې او ورونه لومړي کسان دي چې تاسو هغوی پيژندلي دي او له هغوی سره مو مينه پيدا شوې ده، تاسو او هغوی يوه ډله يی چې دغه ډله د کورنۍ په نامه يادېږي. کورنۍ د سړي او ښځې په واده کولو سره جوړيږي، د اولادونو زيږيدل د کورنۍ د ټولنيز ژوند د پيوند لامل دی چې د ټولنې بنسټ جوړوي او د ټولنې د ډېرو مهمو او بنسټيزو توکو څخه ګڼل کيږي چې په ټولو ټولنو کې منل شوی دی، وده او پراختيا يې کړې ده.

اسلام کورنۍ مهمترين او بنسټيز واحد ګڼي، چې بنسټ يې پر الفت، محبت، لورينې، يووالي او مرسته باندې ولاړ دی او دا بنسټ د الله (جَلّ جَلالُه) په وړاندې د ډېرو غوره بنسټونو څخه دی.

اسلام کورنۍ ژوند د حقونو او مسؤوليت پر بنسټ جوړوي چې په هغې کې د هر غړي دنده معلومه ده. اسلام وايي چې اصلاحات له کورنۍ پيل شي، مسلمانه ښځه او ميړه بايد د خپل ټولنيز ژوند پايښت په کورنۍ کې ترلاسه کړي. کوم ماشوم چې په کورنۍ کې له ښې روزنې، مينې او غوره اخلاقو څخه ګټه واخلي په راتلوونکي کې به ګټور او دنده پيژندونکی شخص شي، له دې امله د اسلام دين کورنۍ ته ډېر اهميت ورکړی.

## (درېیم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **د کورنۍ اهمیت** |
| عمومي موخه | زده کوونکي به د کورنۍ په اهمیت پوه شي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>• د کورنۍ د اهمیت په مفهوم به پوه شي.<br>• د کورنۍ اهمیت به تشریح کړای شي.<br>• د کورنۍ اهمیت په وپېژني او له خپلې کورنۍ سره به لیواله شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ،ډله ییزفعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، د کورنۍ څو انځورونه... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري، عملي ... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د انګیزې د رامنځته کولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي.<br>ستاسو په فکر، ماشوم کوم کوم شیان له مور او پلار څخه زده کوي؟<br>– د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>– د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>– وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>–زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره ولیکي.<br>–کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>– لوست تشریح کوي.<br>–له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>– زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته | – زده کوونکي بېلا بېل ځوابونه ورکوي.<br>– د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>– په غور سره غوږ نیسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– له د لارښوونې سره عمل کوي.<br>– کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– په غور سره غوږ نیسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– په ډلو ویشل کیږي او له لارښونې سره سم | ۴۵ دقیقې |



| | | |
|---|---|---|
| کوي چې د کورني په اړه خبرې وکړي. | عمل کوي. | |
| - د ارزونې لپاره د لوست دپوښتنو څخه پوښتنې کوي. | - ځوابونه ورکوي. | |
| - لوست دې را لنډکړي او د لوست د متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- ښه کورنۍ یو ښه روزنتون دی، چې ماشوم په هغې کې، ښه خوی، رښتیا، امانت ساتینه، صبر، سخاوت، سربښندنه، خدمت، مسؤولیت او غوره اخلاق زده کوي.

۲- ماشوم د کورني ژوند بنسټ له کورنۍ څخه زده کوي.

۳- ښه کورنۍ خپلو ماشومانوته د فکر کولو او د علم د زده کړې لارې چارې چمتو کوي.

## اضافي معلومات

### د کورنۍ اهمیت

کورنۍ له خپلو غړو سره د اقتصاد له پلوه مرسته او لاس نیوی کوي، د هغوی خواړه، جامې، د زده کړو لګښتونه او داسې نورې مادي اړتیاوې پوره کوي، د هغوی عاطفي اړتیاوې په مینه او اخلاص سره پوره کوي، اسلام د الله په عبادت کولو او له شرک څخه د ځان ژغورنې وروسته د کورني بنسټ د پیاوړتیا لپاره خپلو پیروانو ته له مور او پلار سره په نیکیو کولو حکم کوي، لکه څرنګه چې یې پر مور او پلار باندې د اولادونو د ښې روزنې مسؤولیت ایښی دی.

انسان یو اړ مخلوق دی، د بشر له مهمو ستونزو څخه یوه داده چې انسان نه شي کولی پرته له نورو څخه ژوند وکړي، کله چې انسان وزیږیږي، کورنۍ ته اړتیا لري، له کورنۍ او نورو څخه پرته ژوند نه شي کولی کوم وخت چې ماشوم لوی شي بیاهم پلار او مور ته خواړه، جامې، کور، زده کړې، روزنه او امنیت برابروي، چې ښوونځي ته لاړشي او لوست ووایي. خویندې، وروڼه او د کورنۍ نور مشران غړي په زده کړو او نورو شخصي چاروکي له هغوی سره مرستې کوي. کورنۍ یو بنسټ دی چې ضرورت یې د شریعت او عقل له مخې د درک او پېژندنې وړ دی. د کورنۍ جوړښت له نر او ښځې سره کمک دی چې د ګډ ژوند لپاره یې اړیکه ټینګه کړې ده او د ټولنې لپاره خدمت دی.

## (څلورم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | د کورنۍ د غړو دندې |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د کورنۍ د غړو له دندو سره بلدشي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>• د کورنۍ د غړو دندې به وپېژني.<br>• د کورنۍ د غړو د دندو اهمیت به بیان کړي.<br>• خپلې دندې به وپیژني او د هغو په ترسره کولو کې لیوالتیا وښايي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییزفعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، د کورنۍ څو انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>ستاسو په فکر، د ورځنیو کارونو سمول څه ګټه لري؟ | - زده کوونکي بېلا بېل ځوابونه ورکوي. | ۴۵ دقیقې |
| - د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي. | - د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي. | |
| - د لوست متن پرلوړ اواز لولي. | - په غوره سره غوږ نیسي. | |
| - وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره ولیکي. | - له لارښوونې سره عمل کوي. | |
| - کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي. | - کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |
| - لوست تشریح کوي. | - په غوره سره غوږ نیسي. | |
| - له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته | - په ډلو ویشل کیږي او د ښوونکي له لارښونې | |

| | | |
|---|---|---|
| کوي چې د ورځنیو چارو تنظیمول څه ګټې لري په اړه یې خبرې وکړي.<br>– د ارزونې لپاره د لوست پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>– لوست دې را لنډکړي او د لوست د متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | سره سم عمل کوي.<br>– ځوابونه ورکوي.<br>– د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱– د ژوند د چارو د پرمخ بېولو لپاره د کورنۍ د غړو ترمنځ مرسته اړینه ده.
۲– نیکمرغه کورنۍ هغه کورنۍ ده چې غړي یې په خپلو کې مهربان، خواږه او یو، تربله مرستندوی وي.
۳– میندې د کور د کارونو له سرته رسولو سربېره د خپلو ماشومانو ساتنه، روزنه او له کورڅخه بهر، د معلمی، طبابت او داسې نور دندې سرته رسوي.

## اضافي معلومات

**د کورنۍ د غړو ترمنځ دندې**: یوازې ټولنیز نظام دی چې په ټولو (مذهبي او غیرمذهبي) ټولنو کې منل شوی دی او پراختیا یې موندلې ده.
ماشوم په کورنۍ کې نړۍ ته راځي او له چاپېریال سره لومړنۍ اړیکې پېلوي . اروا پېژندونکي په دې آند دي چې د ماشوم لومړني کلونه د هغه په شخصیت او راتلونکې کې مهم رول لري، د ماشوم د ځان، خواوشا او چاپېریال زیاتره پېژندنه له همدې ځایه پیلیږي. د ماشوم د جسماني او رواني روغتیا کچه له هغو اړیکو سره تړلې ده چې کورنۍ یې له هغه سره لري چې څومره کولای شي د هغه اړتیاوې پوره کړي.
تنکۍ ځوانۍ یوه حساسه مرحله ده، چې د نورو بدلونونو ترڅنګ د یوشخص په رواني او جسماني برخه کې رامنځته کیږي د دې پړاو یوه بله مهمه او ګڼه ځانګړتیا چې د ځوان سره د هغه د خپلواکۍ غوښتنې اړیکه ده چې کورنۍ یې له هغه سره لري او تر کومې کچې کوښښ کوي چې د هغه اړتیاوې پوره کړي. کله چې یوې کورنۍ خپلې روز نیزې چارې په سمه توګه عملي کړې نه وی او د ځوان فکر په ښه توګه وده نوي کړې ځینو بدوچارو ته، لکه: په افراطي ډلو کې غړیتوب او داسې نورو کارونو ته میلان پیدا کوي چې فردي او ټولنیزې ستونزې رامنځته کوي.
په دې پړاوکې د مور او پلار او د کورنۍ سخت چلند او یا د هغوی له خوا ډېره نرمي او په بشپړ ډول د هغوی آزاد پرېښودل: سرکشه، نه منونکي، باغیان او پرځان بې باوره ځوانان رامنځته کوي.
د کورنۍ د غړو بې غوري، رواني ناروغي، د هغې اقتصادي او ټولنیزې ستونزې چې د کورنۍ پرغړو بدې اغیزې کوي، ټولنه تراغیز لاندې راولي. وګړي د کورنۍ او ټولنې ترمنځ پیوندونه دي، په کورنۍ کې روزل شوي وګړي ټولنې ته ننوځي او هغه سالمې یا ناسالمې ځانګړتیاوي یا خویونه چې په کورنۍ کې یې زده کوی. ټولنې ته یې ننباسي، له دې کبله د یوې ټولنې سلامتیا د هغې د کورنیو په سلامتیا پورې تړلې ده.

**(پنځم) لوست**

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **په کورنۍ کې نظم** |
| **عمومي موخه** | **زده کوونکي دې په کورنۍ کې له نظم سره بلد شي.** |
| **پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې.** | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>• په کورنۍ کې به د نظم په مفهوم پوه شي.<br>• په کورنۍ کې به د نظم په اړه خرګندونې وکړای شي.<br>• خپل ورځني کارونه به له مهال ویش سره سم برابر او په کورنۍ کې به له ژوند کولو او د نظم له پلې کولو سره مینه پیدا کړي. |
| **د لوست لارې چارې** | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| **د لوست اړین او مرستندویه توکي** | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| **د ارزونې لارې چارې** | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په فکر په کورنۍ کې نظم څه اهمیت لري؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره ولیکي.<br>- کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي. | - زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غوره سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره عمل کوي.<br>- کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غوره سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي. | **۴۵ دقیقې** |

| | | |
|---|---|---|
| - زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د ورځنیو چارو تنظیمول څه ګټې لري په اړه یې خبرې وکړي.<br>- د ارزونې لپاره دلوست له پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې را لنډکړي او د لوست د متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - په ډلو ویشل کیږي او له لارښونې سره سم عمل کوي.<br><br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- په کورنۍ کې د نظم د ټینګښت لپاره باید د کورنۍ هرغړې د هرکار لپاره مهال ویش ولري.
۲- چې د اړتیا په وخت کې یې په اسانۍ سره پیدا کړو.
۳- باید پوه شو چې په کورنۍ کې نظم او پرهغې عمل کول زموږ ژوند آسان او ښه کوي.

## اضافي معلومات

### په کورنۍ کې د نظم اهمیت او اړتیا

یو په هغوچارو کې چې په کورنۍ کې د مور او پلار ذهنونه ستومانه(مغشوشه) کوي د اولادنو بې نظمي ده.

۱- کورنۍ یو ټولنیز نظام یا سیستم دی، د سیستم د تعریف په اړه وایي چې: «سیستم د اجزاو مجموعه ده چې په شریک ډول د ګډې موخې د لاس ته راوړلو لپاره کار او کوښښ کوي» نو که چېرته کورنۍ هم یوسیستم دې نو غړي یې د یوبل په مرسته په ګډه توګه یوه ټاکلې موخه لټو که د دې یوغړی له نظم او هماهنګۍ څخه پرته حرکت وکړي، دا کار د ټول سیستم د بې نظمۍ او ګډوډۍ لامل ګرځي. نو کورنۍ هغه وخت بریالۍ وي او خپلو موخو ته رسېدای شي چې ټول غړي یې منظم او ځیرکه وي. په بل عبارت سره، د ښې او مطلوبې کورنۍ د لولو لپاره دې په ځانګړې توګه نظم او ترتیب ته اهمیت ورکړای شي.

۲- د کور نظم: د پلان او برنامې لرلو نښه ده. هغه څوک چې بې پلانه ژوند کوي طبیعي ده چې بې نظمه کور به ولري، د تنظیم او برنامې شتون په خپله پر نظم او پرهغې د عمل کولو دلالت کوي. کله چې د خپل زوی درسي برنامې ته پام وکړئ، وبه وینئ چې دا برنامه په خاصو ساعتونو او معلومو درسونو تنظیم شوې ده، دا کار د دې بیانوونکي دی چې د دې مدرسې مسؤولینو سرته رسولې دی. په دې توګه یو منظم کورته په کتلو سره دې مطلب ته رسیږو چې په کور کې نظم د برنامې لرلو نښه ده چې د مور او پلار له ځانګړنو څخه ده، چې زیات وخت په کورکې وي، د کور د چارو تنظیم خپلې دندې ګڼي، نو د اولادنو د منظم کولو لپاره هغوی ته وښایو چې مدرسې ته له ورتلو څخه مخکې په کورکې د یوې منظمې برنامې پر بنسټ فعالیت په کار واچوي.

**(شپږم) لوست**

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | جومات |
| عمومي موخه | زده کوونکي دي د جومات په دیني اهمیت پوه شي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>• د جومات په اهمیت به پوه شي.<br>• په جومات کې به د عبادت او ښوونې او روزنې اهمیت تشریح کړای شي.<br>• په جومات کې به د جمعې (جماعت) له لمانځه او دیني ښوونې او روزنې سره مینه پیدا کړي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر،انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي. | | ۴۵دقیقې |
| - ستاسو په فکر جومات د ماشومانو په ښوونه او روزنه کې څه رول لري؟ | - زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي. | |
| - د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي. | - د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي. | |
| - د لوست متن پرلوړ اواز لولي. | - په غوره سره غوږ نیسي. | |
| - وروسته خو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره ولیکي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي هغه دې د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي. | - کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |
| - لوست تشریح کوي. | - په غوره سره غوږ نیسي. | |
| - له خو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

| | | |
|---|---|---|
| - زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې په کورنۍ کې د نظم د ګټو په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې لپاره دلوست د پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست د متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - په ډلوویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- جومات د مسلمانانو د عبادت، ښوونې، روزنې او د مشورې مهم ځای دی.

۲- په جومات کې د ښوونې او روزنې بنسټ د اسلام پیغمبرمحمد (ص) کېښود.

۳- په جومات کې پنځه وخته لمونځ ادا کول مسلمانانو ته له اجر او ثواب څخه سربیره د ټولنیز ژوند د پیاوړتیا لامل هم ګرځي.

## اضافي معلومات

**جومات**

که کورني چاپیریال کې د لمانځه فرهنګ دود شي، نو د لمانځه خوږه زمزمه د کورنۍ فضابه معطره او مبارکه کړي، که ماشومان او اولادونه، مور او پلار په لمانځه ټینګ او ایمانداره ویني، بې له شکه هغوی به خپله بېلګه په خپلو کورو کې ترلاسه کړي او د لمانځه سره به انس او الفت پیدا کړي، چې پایله یې له بې حیایې او بدو څخه به ځان ساتلو او له ککړتیاوو څخه په لریوالي تامیږي، او له ګاونډیانو اوکلیوالو سره به په پاکۍ، رښتیا او ښه نیت سره چار چلند کوي. انساني تجربې د انسان د روزنې له اغېزناکو لاملونو څخه دي. قرآنکریم په بېلابېلو ایتونو کې انسانان لیدلو او فکر کولو ته هڅوي. د لیدلو او یقین کولو ترمنځ مستقیمه اړیکه پرته ده. باید داسې کار وکړو چې زموږ اولاد په بېلابېلو ډګرونو  کې د لمانځه د قیام او د لمانځه د ادا کولو د چمتووالي په فکر کې وي. د کلي په جومات ، د جمعې په لمانځه او داسې نورو لمونځونو کې ګډون کولی شي چې زموږ د اولادنو د لمانځه کولو په روحیه کې  قوت پیدا کړي

## (اووم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | ښوونځی |
| عمومي موخه | زده کوونکي دي د یوټولنیز بنسټ په توګه د ښوونځي په‌اهمیت پوه شي<br>. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>• په ښوونه او روزنه کې به د ښوونځي په اهمیت پوه شي.<br>• په ښوونه او روزنه کې به د ښوونځي اهمیت بیان کړای شي.<br>• په ښوونځي کې به د لوست سره لیوالتیا وښایي . |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر،انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>– ستاسو په فکر، ښوونځی، ښوونه او روزنه په ټولنیز ژوند کې څه رول لري؟<br>– د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>– د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>– وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>– زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره دي ولیکي.<br>– کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>– لوست تشریح کوي. | – زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>– د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>– په غوره سره غوږ نیسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– له لارښوونې سره عمل کوي.<br>– کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | ۴۵دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| – له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>– زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې: موږ چیرته بېلابېل علوم زده کوو او د ټولنیزو مسؤولیتونو سره بلدیږو، په اړه یې خبرې وکړئ.<br>– د ارزونې لپاره دلوست د پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>– لوست دې رالنډ کړي او د لوست د متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | – په غور سره غوږ نیسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– په ډلو ویشل کیږي او د ښوونکي له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– ځوابونه ورکوي.<br>– د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱– ښوونځی له کورنۍ او جومات څخه وروسته لومړنی ټولنیز بنسټ دی چې ماشومان هلته ښوونه او روزنه په رسمي او منظم ډول ترلاسه کوي.

۲– ښوونځي هغه ځای دی چې زده کوونکي هلته دیني، اخلاقي، علمي او ادبي ښوونې او روزنې زده کوي.

۳– د ګټورو زده کړو او سالمې روزنې په لاس ته راوړلو سره پوهه او صالح انسانان ټولنې ته وړاندې کیږي چې د خپل ځان، کورنۍ او د هیواد د خدمت جوګه ګرځو.

## اضافي معلومات

**ښوونځی**

ښوونځی هغه ځای دی چې د زده کونکو د ښوونې په موخه د ښوونکو په مشرۍ رامنځته شوی دی، د ننۍ ورځې په اصطلاح کې هغو تعلیمي مؤسساتو ته ویل کیږي چې د لوړو زده کړو څخه یې د زده کړو کچه ټیټه وي او عمومي زده کړې په کې ترسره کیږي.

زیاتره هیوادونه ځانته د زده کړې ځانګړې سیستم لري، چې د دې سیستم له مخې په ښوونځیو کې شاملېدل اجباري دي. په بېلابیلو هېوادونو کې د ښوونځیو نومونه توپیر لري چې په عمومي ډول د لومړنۍ دورې ښوونځي د ماشومانو لپاره، د منځنۍ دورې ښوونځي د تنکیو ځوانان لپاره چې لومړنۍ زده کړې یې په بریې په سره سرته رسولي وي، په افغانستان کې ښوونځي په دریو دورو: لومړنۍ، منځنۍ او لیسه باندې یادیږي. د لیسې یا د دولسم له فراغت څخه وروسته د کانکور له ازموینې وروسته د لوړو زده کړو پوهنتونونو ته ورځي.

**(اتم) لوست**

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **په ښوونځي کې دندې** |
| **عمومي موخه** | **زده کوونکي دې د ښوونځي د غړو له دندو سره بلد شي.** |
| **پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې.** | زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>• د ښوونځي د غړو دندې به وپیژني.<br>• د مدیر، ښوونکي او سر ښوونکي دندې به تشریح کړای شي.<br>• د ښوونځي او د ښوونځي د غړو پروړاندې به خپلې دندې |
| **د لوست لارې چارې** | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| **د لوست اړین او مرستندویه توکي** | کتاب، تخته، تباشیر... |
| **د ارزونې لارې چارې** | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي: | | **۴۵ دقیقې** |
| – ستاسو په فکر، زده کوونکي باید په ښوونځي کې کومې دندې سرته ورسوي؟ | – زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي. | |
| – د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي. | – د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي. | |
| – د لوست متن پرلوړ اواز لولي. | – په غور سره غوږ نیسي. | |
| – وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي. | – له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| – زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره ولیکي. | – له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| – کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي. | – کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |
| – لوست تشریح کوي. | – په غور سره غوږ نیسي. | |
| – له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي. | – له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| – زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د ښوونکي د دندو په اړه خبرې | – په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

| | | |
|---|---|---|
| وکړئ.<br>- د ارزونې لپاره دلوست له پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست د متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- د زده کوونکو دنده داده چې د (جمعې او رخصتیو ورځو) څخه پرته هره ورځ ښوونځي ته لاړشي او په خپلو لوستونو کې کوښښ وکړي.

۲- ښه زده کوونکی د مدیر، ښوونکو او د ټولو زده کوونکو درناوی کوي، د ښوونځي په ډله ییزو فعالیتونو کې تل فعاله ونډه اخلي، د ښوونځي قوانین په پام کې نیسي او مسؤولیت پیژندونکی وي.

۳- د ښوونځي د معاونانو او سرښوونکو دندې د مضامینو د مهال ویش ترتیب او تنظیم، د درسي توکو ، د حاضرۍ اود ترقي تعلیم برابرول دي.

## اضافي معلومات

### په ښوونځي کې دندې

په ښوونځي کې هرغړی خپلې دندې لري، لکه: مدیر چې د ښوونځي مدیریت يې پرغاړه وي، د ښوونځي تدریسي او اداري مرستیالان، اداري، سرښوونکي او د ښوونځي ښوونکي په هرښار کې د ښوونې او روزنې د ریاست او ولایتي ادارې لخوا اداره کیږي.

**(نهم) لوست**

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **د افغانستان د پوهنې تاریخ** |
| عمومي موخه | **زده کوونکي دې د افغانستان د پوهنې تاریخ په اړه معلومات تر لاسه کړي.** |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>• د افغانستان د پوهنې له تاریخ سره به بلد شي.<br>• د افغانستان د پوهنې تاریخ به تشریح کړای شي.<br>• د افغانستان د پوهنې تاریخ سره به لیوالتیا وښایي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر،انځورونه... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>– څه فکر کوئ، زموږ په هیواد کې رسمي ښوونه کوم وخت پیل شوه؟<br>.– د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>– د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>– وروسته خو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>– زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره ولیکي.<br>– کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>– لوست تشریح کوي.<br>– له خو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>– زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه | – زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>– د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>– په غور سره غوږ نیسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– له لارښوونې سره عمل کوي.<br>– کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– په غور سره غوږ نیسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– په ډلو ویشل کیږي او له لارښونې سره سم | ۴۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| ورته کوي چې د لوست عمده مطلبونه په څو کرښو کې را لنډ کړي.<br>- د ارزونې لپاره له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست د متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | عمل کوي.<br><br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- ماشومانو په کورونو او جوماتونو کې زده کړې کولې، ليکل او لوستل يې زده کول.

۲- د امير حبيب الله خان په وخت کې (حبيبيه او حربيه) په نومونو دوه ښوونځي جوړ شول.

۳- د امير امان الله خان په وخت کې يې ډېر پرمختګ وکړ، د نارينه وو له ښوونځيو څخه پرته ِيو بل ښځينه ښوونځی د (مستورات) په نوم هم په کابل کې جوړ شو.

## اضافي معلومات

د لا زياتو معلوماتو د ترلاسه کولو په موخه دي لاندې منابعو ته مراجعه وشي:

- افغانستان در مسير تاريخ کتاب

(لسم) لوست

وخت : یو درسي ساعت

| سرليکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | په کلي کې استوګنه |
| عمومي موخه | زده کوونکي دي په کلي کې د استوګنې په اړه معلومات حاصل کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>• د کلي له استوګنې سره دي اشنا شي.<br>• د کلي په جوړښت کې به د اوبو اهميت بيان کړای شي.<br>• دکليوالي او کوچيانې ژوند ځانګړتياوې دي له يو بل سره پرتله کړای شي.<br>• باوري شي چې کلی ښه هوا لري او اقتصادې پرکړنې او مالداری ولاړ دی. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير،انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>زمونږ د هيواد زياتره خلك په کوم ځای کې ژوند کوي؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ آواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>-زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره دي وليکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکی دي هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دي کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>-له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي.<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي<br>- په ډلو ويشل کيږي او د ښوونکي له | ۴۵ دقيقې |

| | | |
|---|---|---|
| - زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې: د کليو خلک زياتره په کومو چارو بوخت وي؟ په هکله يې بحث وکړئ.<br>- د ارزونې لپاره له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست د متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي اوله لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- د کليوالي خلکو د اقتصاد بنسټ په کرنيزو، مالدارۍ او لاسي صنايعو ولاړ دی.

۲- د کليو خلک د مالدارۍ د خالصومحصولاتو څخه ګټه اخلي او پاکه هوا تنفس کوي.

۳- دولت د کليوالود ژوند د ښه والي، روغتيايي او تعليمي خدمتونو د کولو لپاره د کليو د پراختيا وزارت جوړ کړی دی.

## اضافي معلومات

**په کلي کې استوګنه**

انسانانو د خپل پيدايښت راهيسې هڅه کړې چې خپل ژوند ورځ تربلې منظم کړي. انسانان په خپل لومړني ټولنيز ژوند کې کوچيان او مالداران وه چې د خپلو حيواناتو لپاره يې د وښو لرونکو سيمو د پيد اکېدنې په موخه د يوځای څخه بل ځای ته کډه کوله. د طبيعت ګواښونو (د هوا نابېره بدلون، د ځړځايونو له منځه تلل، وچکاليو او ...) خلک اړکړل چې د مالدارۍ ترڅنګ کرنې ته هم مخه وکړي. د سيندونو او چينو د دايمي اوبو ترڅنګه يې کورونه جوړکړل او خپلې اړتياوې به يې د کرنې او مالداري له لارې پوره کولې. د کليو په جوړولو کې داوبو سربېره ښه هوا او د ځمکې حاصلخېزۍ هم رول درلوده. هغه کلي چې خوا په خوا د کاريزونو،چينو، جوماتونو ، مدرسو ... او د يوه ميدان ګرد چاپېره جوړ شوي وي د متمرکزو کليو په نامه ياديږي او د هغو کليو ودانۍ  چې يو له بله واټن ولري او کرنيزې ځمکې يې ترمنځ پرتې وي هغوته شندلي کلي وايي. د آباديو په جوړونه کې هم جغرافيايي چاپېريال غوره رول لوبوي. د مثال په توګه: په هغو ځنګلي سيمو کې چې ډېر باران اوري هلته خلک خپل کورونه د لرګيو څخه او چت يې مخ په ځوړ جوړوي. په غرنيو سيمو کې د کورونو ديوالونه د ډبرو اوخټو څخه جوړشوي او صحرايي سيموکې ګونبزي ډوله چتونه جوړيږي. په هغو سيموکې چې د کرنيزو ځمکو څخه د زياتې ګټې اخېستنې امکان شتون ولري په هغو کليو کې ډېر خلک استوګنه کوي نور لاملونه لکه: د کرنې لپاره اوبه، ښه هوا او امنيت هم د کليو دنفوسو په ډېر والي کې اغيزمن دي.

د يادونې وړ ده چې په کلو کې د طبيعي پېښو په کيدو سره دولت او مرسته کوونکې موسسې دنده لري چې دپېښې څخه د مخه د کليوخلکو ته د پېښو په اړ وند لازم پوهاوی ورکړي او د طبيعي پېښو په صورت کې لازمې مرستې دکليو مصيبت ځپلو ته ورسوي.

## ( يولسم) لوست

وخت : يو درسي ساعت

| سرليكونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | د کلي د خلکو کسبونه او لاسي صنايع |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د کلي د خلکو د کسبونو په اړه معلومات حاصل کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>• د کلي د خلکو د کسبونو سره به اشنا شي.<br>• د کلي د خلکو د کسبو او د لاسي صنايعو ځانګړتياوې به بيان کړای شي.<br>• باوري شي چې کليوال د کرنې او مالدارۍ ترڅنګ د لاسي صنايعو په توليد هم بوخت دي . |
| د تدريس لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير،انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنې وړاندې کوي:<br>– څه فکر کوئ، په کلي کې څه ډوله کسبونه او لاسي کارونه دود دي؟<br>- ستاسې په فکر، زموږ د هېواد د کليو د خلکو لاسي صنايع کوم دي؟<br>– د لوست سرليک پر تخته ليکي او د زده کوونکو پام انځورونو ته را ګرځوي.<br>– د لوست متن په لوړ اواز سره لولي .<br>– وروسته خو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>–زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي. | – زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>– زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>– زده کوونکي سرليک اوبيا تصويرونه په ځير سره ګوري او په هکله يې بېلا بېل نظرونه ورکوي.<br>– په غور سره غوږ نيسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵ دقيقې |

| | | |
|---|---|---|
| -کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>-له څو زده کوونکو څخه دې وغواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- زده کوونکي دې په ډلو وويشي او دنده دې ورکړي چې د لوست مهم مطلبونه په خپلو کتابچو کې وليکي .<br>- د ارزونې په موخه دلوست پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست د متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي . | - کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو وېشل کيږي او له لارښوونې سره سم کار کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي اوله لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱-زموږ د هېواد د لاسي صنايعو صادراتي محصولات له : غاليو، ټغرونو او خامک ګنډلو له ډولونو څخه عبارت دي.

۲- زموږ په هېواد کې لاسي صنايع لکه: خامک ګنډنه، د چرمو ګنډنه، د ستمالونو ګنډنه اوداسې نور زياتره د ښځو په لاس ګنډل کيږي.

۳- دکليو نارينه زياتره په درندو کسبونو لکه: پښګري، خټګري، ترکاڼي او داسې نورو بوخت د ي.

## اضافي معلومات

**د کلي د خلکو کسبونه**

دا چې دکلي د خلکو ژوند تر ډېره د بزګرۍ پر پيدا وارو ولاړدی او د بزګرۍ پيدا وارو د ژوندانه اړ تياوې په بشپړه توګه نه شوې پوره کولی او له بلې خوا خلکو د بزګرۍ د چارو د ښه سرته رسولو له پاره وسايلو او سامان آلاتوته اړتيا درلوده ، نوله دې امله خلکو د داسې لارو چارو لټون پيل کړل، چې په مرسته يې خپل اقتصادي حالت ښه کړي. په پايله کې خلکوکسبونو او لاسي کارونو لکه: پښګري، ترکاڼي، نجاري، د غاليو اوبدلو، خامک ګنډلو، بنينونو اوبدلواو داسي نورو ته مخه کړه .

## (دولسم) لوست

وخت : یو درسي ساعت

| سرليکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | په کلي کې کرنه |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د کلي دکرنې په اړه معلومات حاصل کړي. |
| پوهنيزې ، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>• په کلي کې به د کرنې سره اشنا شي.<br>• د نباتاتو په کرنه کې به د اقليم په اهميت پوه شي.<br>• غلې، پلي لرونکي نباتات ، طبي نباتات او قند لرونکي نباتات به يوله بله سره توپير کړای شي.<br>• باوري به شي چې د هيواد اقليم د ډول ډول نباتاتو د کرلو لپاره مناسب دی. |
| د تدريس لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير،انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- څه فکر کوئ، ستاسو په کلي کې مهم کرنيز محصولات کوم دي؟<br>-. د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ آواز لولي.<br>- وروسته خو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ آواز سره ولولي.<br>-زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحگانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره وليکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحگانې چې زده کوونکي | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي.<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- کوم لغتونه او اصطلاح گانې چې ښوونکي | ۴۵ دقيقې |

| | | |
|---|---|---|
| پرې نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>- زده کوونکي دې په ډلو ووېشي او له هرې ډلې څخه دې وغواړي چې د خپلې سيمې کرينزو محصولاتو نومونه واخلي .<br>- د ارزونې په موخه د لوست له پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او دکورنۍ دندې ته چې د لوست په آخردی زده کوونکي دې ورته ځير کړي. | معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- زده کوونکي په ډلو وېشل کيږي او له لاربښوونې سره سم کار کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي اوله لاربښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- زموږ د استوګنې په سيمه کې غلې، پلي لرونکي نباتات ، قند لرونکي نباتات، مېوې او داسې نور کرل کيږي.

۲- د کليو د اقتصاد بنسټ پر کرنې او مالدارۍ ولاړ دی.

۳- د کرنې صادراتي محصولات لکه: وچې او تازه مېوې، طبي بوټي او سابه بهرته هم صادريږي.

## اضافي معلومات

**په کلي کې کرنه**

لکه څنګه چې مو وويل دکلي د خلکو اقتصاد پرکرنيزو پيداوارو ولاړ دی. له همدې امله خلکو هڅه وکړه چې پوه شي چې کوم ډول خاوره او اقليم ، دکوم ډول تخم دکرلو لپاره مناسب دی او په دې توګه د خپلو پيداوارو کچه لوړه کړي. د مثال په توګه : په مديترانه يي اقليمي سيمو کې د نارنج دکورنۍ مېوې ښه حاصل ورکوي او کرنيزو ځمکو څخه يې په کال کې دوه يا درې ځله حاصل را ټوليږي .په غرنيو سيمو کې ځانګړې نباتات چې د سړې هوا په مقابل کې مقاومت لري او موده يې لنډه وي کرل کېږي څرنګه چې په هغو سيمو کې د نباتاتو د ودې دسړو په سبب محدوده ده نوځکه په کال کې يوځل حاصل را ټوليږي.دا چې کرنيز پيداوار لکه: غلې دانې، پلي لرونکي نباتات، قند لرونکي نباتات او مېوې د پروتينونو، منرالونو او ويتامينونو ښه سر چينه شمېرل کېږي، له دې امله انسانانو تل هڅه کړې او کوي يې چې دکرنيزو پيداوارو کيفيت اوکميت ډېر او ښه کړي.

## (دیارلسم) لوست

وخت : یو درسي ساعت

| سرليکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | په کلي کې مالداري |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د کلي د مالدارۍ په اړه معلومات حاصل کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>• د مالدارۍ سره به آشنا شي.<br>• د مالدارۍ د ارزښت په هکله به معلومات پيداکړي.<br>• د اهلي څارويو د روزنې ښه طريقه وويلای شي.<br>• اهلی او وحشي حيوانات به يوله بل سره توپير کړای شي.<br>• له مالدارۍ سره به ليوالتيا پيداکړي. |
| د تدريس لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير،انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>– څه فکر کوئ، په کلي کې څه ډول کورني څاروي ساتل کيږي؟<br>– د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>– د لوست متن پرلوړ آواز لولي.<br>– وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ آواز سره ولولي.<br>– زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاگانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره وليکي.<br>– کوم لغتونه او اصطلاحگانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>– لوست تشريح کوي. | – زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي.<br>– د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>– په غور سره غوږ نيسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي<br>– کوم لغتونه او اصطلاح گانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>– په غور سره غوږ نيسي.<br>– زده کوونکي په ډلو وېشل کيږي او له | ۴۵ دقيقې |

| | | |
|---|---|---|
| - زده کوونکي دي په ډلو ووېشي او په دي اړه چې دکلي خلك ولې له مالدارۍ سره مينه لري بحث وکړي.<br>- د ارزونې په موخه دلوست له پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او کورنۍ دندې ته زده کوونکی هڅوي. | لارښوونې سره سم کار کوي.<br><br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيزته غوږ نيسي اوله لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱–زموږ خلك اهلي څاروی د خپلو اړتياوو د لرې کولو، لکه: یوې کولو، لبنیاتو، غوښواو د وړلو راوړلو لپاره ساتي.

۲– انسانو له لرغونو زمانو را هېسې د څارويو په روزنې پېل کړی ترڅو د هغو دغوښو، پوستکو، وړيو او د وړلو راوړلو لپاره ورڅخه ګټه واخلي.

۳– هغه څاروي چې خلك يې د خپلو اړتياوو د پوره کولو لپاره روزي د اهلي څارويو په نامه يادېږي.

**اضافي معلومات**

**په کلي کې مالداري**

که څه هم د څارويو روزنه او ساتنه د کوچيانو دنده ده خو له هغه ارزښت له مخې چې څاروي يې د انسانانوپه ژوندکې لري، دکلي خلکو هم د څارويو پرروزنې او ساتنې لاس پورې کړی دی، چې له دې لارې خپلې اقتصادي او خوراکي ستونزې حل کړي. دهغو يو څه محصولات په خپله په کلي کې مصرفيږي او پاتې يې ښارونو او بهرته استول کيږي چې د کورني اقتصاد په پیاوړتیا کې ستره ونډه لري.

## (خوارلسم) لوست

وخت : یو درسي ساعت

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | په کلي کې د مالدارۍ ګټې |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د مالدارۍ د ګټو په هکله معلومات حاصل کړي. |
| پوهنيزې، مهارتی او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>• په هېواد کې د مالدارۍ، په اهمیت به پوه شي.<br>• د اهلي څارویو د روزنې ښه طریقه به تشریح کړای شي.<br>• په لاسي صنایعو کې به د مالدارۍ د محصولاتو د اهمیت سره آشنا شي.<br>• د څارویو محصولات به معرفي کړای شي.<br>• د مالدارۍ له ګټو سره به مینه پیدا کړي. |
| د تدریس لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر،انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>– ستاسو په نظر دکومو څارویو له شیدو،پوست، او غوښو څخه ګټه اخستل کیږي.<br>– د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>–د لوست متن پرلوړ آواز لولي.<br>– وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ آواز سره ولولي.<br>–زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>–کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>– لوست تشریح کوي. | – زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>– د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>– په غور سره غوږ نیسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– په غور سره غوږ نیسي. | ۴۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| –له خو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>– زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د مالداری د ګټو په هکله بحث وکړئ.<br>– د ارزونې په موخه دلوست له پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>– لوست دې رالنډ کړي او د لوست د متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | – له لارښوونې سره سم عمل کوي<br>– په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– ځوابونه ورکوي.<br>– د لوست لنډیز ته غوږ نیسي اوله لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱–د څارویو له شیدو څخه ډول ډول لبنیات لکه : مستې، شرومبې، کوچ، پنیر، چکه ، اوکورت جوړیږي.

۲– د څارویو محصولات لکه: قره قلي پوستکي، وړی، پوستکي او د پسونو کولمې بهرته صادریږي.

۳– د څارویو روزنه د خوړو په برابرولو او د کورنۍ دا قتصاد په ښه والي کې غوره رول لوبوي.

## اضافي معلومات

**په کلي کې د مالداری ګټې**

حیواني محصولات هغه محصولات دي چې له ژوندیو څارویو څخه او یایې له حلالېدو څخه وروسته په لاس راځي.هغه محصولات چې د ژوندیو څارویو څخه ترلاسه کیږي هم په دوو برخو ویشل کیږي یعنې هغه چې د خوړو ارزښت لري لکه: شیدې، غوښې، شات او هګۍ او هغه چې نه خوړل کیږي لکه: وړی، پوستکی،د ووزو وېښته(وژغنې)، د کارکولو ځواك او داسې نور.

هغه محصولات دي چې د حلالولو وروسته لاسته راځې هم په دوو برخو وېشل کیږي. اصلي محصولات لکه: غوښه، وازده او هډوکي چې هر یود انسان په ژوند کې ځانګړی ارزښت لري. هغه صنعتي محصولات چې د خوړلو ارزښت نه لري لکه: د قره قل پوستکي، څرمن، د پسونو کولمې، دګېډې دننه وازده او داسې نور.

**(پنځه لسم) لوست**

وخت : یو درسي ساعت

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | په ښار کې ژوند |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د ښاري ژوند په هکله معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنيزې ، مهارتی او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br><br>• زده کوونکي به د ښاري ژوند سره آشنا شي.<br>• د ښاري ژوند ځانګړتياوې به ووايي.<br>• ښار به تعريف کړای شي.<br>• د ښاري او کليوالي ژوند توپيرونه به ووايي.<br>• ښاري ژوند سره به مينه پيدا کړي. |
| د تدريس لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير،انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- څه فکر کوئ، ښاري ژوند له کليوالي ژوند سره څه توپير لري؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ آواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ آواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي.<br>- کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي. | - زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي<br>- په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره | ۴۵ دقيقې |

| | | |
|---|---|---|
| - زده کوونکي په ډلو ویشي او په دې اړه چې د ښار خلک په کومو کارو بوخت دي بحث وکړئ.<br>- د ارزونې په موخه دلوست له پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست د متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي اوله لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- ښار هغه ځای دی چې هلته خلک زیاتره یوله بل سره نږدې ژوند کوي. ښارونه عموماً بازارونه، پارکونه، تفریح ځايونه، ډېر سرکونه، ښاروالی، دولتي او غېردولتي ادارې لري.

۲- په ښارونو کې د دولتي ادارو تر څنګ غیر دولتي ادارې لکه: تجارت خانې، بازارونه، تولیدي کارخانې هم شتون لري.

۳- په ښارونو کې څکه ډېر خلک ژوند کوي چې هلته تعلیمي، روغتیایي، ښاري، تولیدي او داسې نورې اسانتیاوې وي.

## اضافي معلومات

**په ښار کې ژوند**

لومړنيو انسانانو خپل ژوند د ميوو په ټولولو او ښکار کولو له لارې پرمخ وړه وروسته يې د څارويو په ساتنې پېل وکړ او يو ځای څخه به يې بل ځای ته کوچ کاوه ، په بله مرحله کې د مالدارۍ ترڅنګ په کرنې هم پېل وکړ، کلي او کوچني ښارونه يې تشکيل کړل. لومړنی ښار د بين النهرين (اوسني عراق) په سيمه کې منځ ته را غلی وه.د ښاري او کليوالې ژوند ترمنځ يو توپير هم د خلکو د ژوند اقتصادي فعاليتونه يعنې په ښارونو کې خلک له کرنې پرته نورفعاليتونه هم کوي لکه: په کارخانو،دولتي او خصوصي ادارو، مغازو او داسې نورو کې کار کول. سربېره پر دې کليو کې د ښارونو په پرتله لږ نفوس ژوند کوي. د هېواد لومړني زياتره ښارونه د سيندونو او سوداګريزو لارو ترڅنګ جوړشوي دي. دا چې په ښارونوکې زياتې آسانتياوې لکه: برېښنا، مکتبونه، تعليمي موسسې، پوهنتونونه، روغتونونه، ښاروالی، صنعتي کارخانې، ترانسپورت، د کارلپاره ښه شرايط او داسې نور شتون لري. نو له دې امله دکليو زياتره خلک ښارونو ته مهاجرت کوي او هلته ژوند اختياروي.

## (شپاړلسم) لوست

وخت : یو درسي ساعت

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | د ښاري خلکو کسبونه |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د ښاري کسبونو په هکله معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنيزې، مهارتی او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>• له ښاري کسبونو سره به آشنا شي.<br>• د ښاري او کليوالي کسبونو توپيرونه وويلای شي.<br>• د ښاري کسبونو گټې به ووايي.<br>• د ښاري کسبگرو د توليداتو سره به مينه پيدا کړي او دهغو له توليداتو څخه به گټه واخلي. |
| د تدريس لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير،انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په اند، د ښار خلک په کومو کارو بوخت دی؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ آواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ آواز سره ولولي.<br>-زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحگانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحگانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي. | - زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- کوم لغتونه او اصطلاح گانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې وليکي. | ۴۵ دقيقې |

| | | |
|---|---|---|
| - له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د ښار د خلکو د کسبونو په اړه بحث وکړئ.<br>- د ارزونې په موخه دلوست له پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او کورنۍ دندې ته دې زده کوونکي ځیر کړي. | - په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي اوله لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱-په ښارونو کې کسبگران له مسگرۍ سربېره په زرگرۍ، خټگرۍ، ترکانۍ، کلالۍ، خیاطۍ او نورکسبونو بوخت دي.

۲- په ښارونو کې ډول ډول شیان لکه: موټر، موټرسیکلونه، بایسکلونه، رادیوگانې، تلویزیونونه، کمپیوټرونه، برېښنایي سامان الات، جامې، د کورنیود اړتیا وړ سامان الات، فرشونه او داسې نور شیان پلورل کیږي.

۳- هر زده کوونکی په خپله خوښه ځواب ورکوي.

## اضافي معلومات

**د ښاري خلکو کسبونه**

په ښارونو کې دلاسي صنایعو ډول ډول کسبونه لکه: زرگري، خټگري، ترکانې، خیاطې، بوټ گنډل او داسې نور شتون لري او دهغو ترڅنګ عصري ماشیني صنایع هم په صنعتي پارکونوکې فعالیت کوي چې د هېوادوالو یوه اندازه اړتیاوې پوره کوي.کله چې ښارونو ته لاړ شوهلته د لاسي صنایعو او ماشیني داخلي او بهرنیو صنایعو د محصولاتو ډول ډول شیان لکه: موټرونه ، موټرسیکلونه، رادیوگانې، تلویزیونونه، ډول ډول جامې، د کورنو سامان الات او داسې نور گورو.

## اوه لسم لوست

وخت : یو درسي ساعت

| سرليکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **د ښارونو ډولونه** |
| عمومي موخه | **زده کوونکي دې د ښارونو د ډولونو په اړه معلومات ترلاسه کړي.** |
| پوهنيزې، مهارتی او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>• د ښارونو د ډولونو سره به بلدشي.<br>• د لويو او کوچنيو ښارونو ترمنځ توپيرونه به بيان کړای شي.<br>• د لويو او کوچنيو ښارونو تر منځ نښې به د نقشې پرمخ تفکيک اوپه ګوته کړای شي.<br>• د ښاري ژوند سره به مينه پيدا کړي. |
| د تدريس لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير،انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده‌کوونکو فعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>– دکتاب د متن په انځورکې کوم ډول ښارونه ګورئ؟<br>– د لوست سرليک پر تخته ليکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې دلوست انځورونه په ځير سره وګوري او په هکله دې فکر وکړي او و دې وايي چې په انځورونو که څه ګوري.<br>– د لوست متن دې په لوړ اواز ولولي او وروسته لار ښوونه کوي چې څو زده کوونکي دې هم لوست په لوړ اواز ولولي اونور زده کوونکي دې ستونزمنې کلمې په نښه کړي .<br>– هغه ستونزمنې کلمې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي، پر تخته يې ليکي ، معنا او وروسته لوست | – زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>– د نوي لوست سرليك ته پام اړوي ، انځورونه په ځير ګوري او په هکله يي نظر ورکوي.<br>– ځير وي او خپلي تېروتنې سموي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې وليکي او له | ۴۵ دقيقې |

| | | |
|---|---|---|
| تشریح کوي او لار ښوونه کوي چې څو زده کوونکي دي هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ووېشي او لار ښوونه ورته کوي چې د لوست د ځانګړتیاوو په پوهېدو بحث وکړئ چې زموږ په هېواد کې کوم ډول ښارونه شته دي.<br><br>د ارزونې په موخه دلوست له پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>- د لوست لنډیز وایي اوکورنۍ دنده چې د لوست په پای کې لیکل شوې ده ، لارښوونه کوي. | لارښوونې سره سم دي عمل وکړي.<br><br>- په ډلو ویشل کېږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي اوله لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱-په ښارونو کې ډول ډول صنعتي محصولات تولیدیږي او لومړني خام توکي په سوداګریزو مصنوعي توکو بدلیږي.

۲- سیاسي ښارونه عموماً دهېوادونو پلازمېنې جوړوي چې په هغو کې زیاتره اداري او سیاسي تصمیمونه نیول کېږي او د دولت رئیس او وزارتونه هلته موقعیت لري.

۳- کابل ښار د سیاسي ښارونو له ډلې څخه شمېرل کېږي.

## اضافي معلومات

### د ښارونو ډولونه

د ښارونو په تعریفاتو کې زیاتره د نفوسو شمېر، اقتصادي فعالیتونو، اداري حوزو اوداسې نورو ته اشاره شوې ده. په ښارونو کې د کرنې پرته نورفعالیتونه شتون لري او زیاتره ښارونه د مالونو په تولید او ځینې نور یې د را کړې ورکړې مشغول دي او د سیمه اییزو دولتي چارواکو په واسطه اداره کېږي خو اوس د ښارونو خلک په ډول ډول کارونو په ځانګړي ډول اقتصادي ، صنعتي او خدماتي چارو بوخت دي.

په لومړیو کې ښارونه اداري،سیاسي او مذهبي مرکزونه وو؛ خو اوس د نفوسو په شمېر او د ښارونو په پراخوالي ټینګار کېږي چې د هغې پر اساس په کوچنیو ، منځنیو او لویو ښارونو وېشل کېږي.کوچنیو ښارونو ته ښارګوټي هم ویل کېږي. په لویو ښارونو کې لوی بازارونه شته چې هلته د ټوکرانو، خوراکي توکو پلورنځي اوورکشاپونه جوړ شوي دي . چې زیاتره خلک هغه ځانګړي بازارونه د رستو په نامه هم یادوي.

**(اتلسم) لوست**

وخت : یو درسي ساعت

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **دافغانستان مهم او تاریخي ښارونه** |
| **عمومي موخې** | **زده کوونکي دې د افغانستان د مهمو او تاریخي ښارونو په هکله معلومات حاصل کړي.** |
| **پوهنیزې، مهارتی او ذهنیتي موخې.** | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>• د افغانستان مهم او تاریخي ښارونه به وپېژني.<br>• د هېواد د مهمو تاریخي ښارونو نومونه به واخلي او په نقشه کې به یې هم وښودلای شي.<br>• د هېواد له تاریخي ښارونو سره به مینه پیدا کړي. |
| **د تدریس لارې چارې** | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| **د لوست اړین او مرستندویه توکي** | کتاب، تخته، تباشیر،انځورونه ... |
| **د ارزونې لارې چارې** | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په اند، د افغانستان تاریخي ښارونه کوم دي؟<br><br>- د لوست سرلیک پر تخته لیکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې دلوست انځورونه په ځیر سره وګوري او په هکله دې فکر وکړي او و دې وایي چې په انځورونو کې څه ګوري.<br><br>- د لوست متن دې په لوړ اواز ولولي او وروسته لار ښوونه کوي چې څو زده کوونکي دې هم لوست په لوړ اواز ولولي اونور زده کوونکي دې ستونزمنې کلمې په نښه کړي .<br>- هغه ستونزمنې کلمې چې زده کوونکي پرې نه | - زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br><br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي انځورونه په ځیر ګوري او په هکله یې نظر ورکوي.<br><br>- ځیر وي او خپلې تېروتنې سموي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي | ۴۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| پوهيږي، پر تخته يې ليکي ، معنا او وروسته لوست تشريح کوي او لار ښوونه کوي چې څو زده کوونکي دې هم لوست تشريح کړي.<br>– زده کوونکي په ډلو ووېشي او لار ښوونه ورته کوي چې د نقشې پر مخ د افغانستان تاريخي ښارونه لکه:کندهار، مزارشريف، پروان، کندز ، پکتيا، هرات، باميان، غور ، غزني او داسې نور وښي.<br>– د ارزونې په موخه دې د لوست د پای پوښتنې طرحه کړي.<br>– د لوست لنډيز وايي اوکورنۍ دنده چې د لوست په پای کې ليکل شوې ده ، لارښوونه کوي. | په خپلو کتابچو کې وليکي او له لارښوونې سره سم دي عمل وکړي.<br>– په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– ځوابونه ورکوي.<br>دلوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱–د بلخ ښار ته ( ام البلاد) هم ويل کيږي چې د هېواد په شمال کې موقعيت لري.

۲– د ورپښمو تاريخي لارې د هند او چين هېوادونه له اروپايي هېوادونو سره نښلولي وو.

۳– د هېواد د تاريخي ښارونو له ډلې څخه د کابل، غزني، باميانو او بلخ دي.

## اضافي معلومات

### د افغانستان مهم او تاريخي ښارونه

افغانستان يو لرغونی هېواد دی او له لرغونو زمانو راهيسې يې لوی لوی ښارونه درلودل؛ لکه: بلخ يا ام البلاد (د ښارونو مور)، هرات، باميان، کابل، کاپيسا، بست غور، غزني او.. چې د ورپښمومشهوره لاره هم له ډيرو دغوښارونو څخه تېره شوې وه او د هندوستان او چين هېوادونه يې له اروپا سره نښلولي وو. د وخت په تېرېدو سره د پخوانيو ښارونو سربېره نورو ښارونو هم ډېره پراختيا موندده. نن زموږ د هېواد مهم او لوی ښارونه دادي: کابل، مزارشريف، کندهار، هرات، جلال آباد، کندز او...

**(نولسم) لوست**

وخت : یو درسي ساعت

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **د نړۍ لوی ښارونه** |
| **عمومي موخه** | **زده کوونکي دې د نړۍ د لویو اومهمو ښارونو په هکله معلومات حاصل کړي.** |
| **پوهنيزې ، مهارتی او ذهنيتي موخې.** | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>• د نړۍ له لویو او مهمو ښارونوسره به بلد شي.<br>• د لویو ښارونو د لویوالي لاملونه او اهمیت به بیان کړای شي.<br>• د نړۍ لوی ښارونه به په نقشه کې وښودلای شي.<br>• د لویو او مهمو ښارونو له مطالعه کولو سره به مینه پیدا کړي. |
| **د تدریس لارې چارې** | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| **د لوست اړين او مرستندويه توکي** | کتاب، تخته، تباشیر،انځورونه ... |
| **د ارزونې لارې چارې** | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>– کله مو د نړۍ د کوم لوی ښار نوم اورېدلی دی؟<br><br>– د لوست سرلیک پر تخته لیکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې دلوست انځورونه په ځیر سره وګوري او په هکله دې فکر وکړي او و دې وایي چې په انځورونو کې څه ګوري.<br>– د لوست متن دې په لوړ اواز ولولي او وروسته لار ښوونه کوي چې څو زده کوونکې دې هم لوست په لوړ اواز ولولي اونور زده کوونکي دې ستونزمنې کلمې په نښه کړي .<br>– هغه ستونزمنې کلمې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي، پر تخته یې لیکي ، معنا او وروسته لوست | – زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br><br>– د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي انځورونه په ځیر ګوري او په هکله یې نظر ورکوي.<br><br>– ځیر وي او خپلې تېروتنې سموي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>– کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي او له | ۴۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| تشریح کوي او لار ښوونه کوي چې څو زده کوونکي دې هم لوست تشریح کړي.<br>– زده کوونکي په ډلو ووېشي او لار ښوونه ورته کوي چې د لوست فعالیت بشپړ کړي.<br>– د ارزونې په موخه دې د لوست د پای پوښتنې طرح کړي.<br>– د لوست لنډیز وایي اوکورنۍ دنده چې د لوست په پای کې لیکل شوې ده ، لارښوونه کوي. | لارښوونې سره سم دې عمل وکړي.<br>– په ډلو ویشل کېږي او له لارښوونې سره سم عمل ك<br>– ځوابونه ورکوي.<br>– دلوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱–د نړۍ د لویو ښارونو له ډلې څخه کابل، تهران، نیویارك، پاریس، ریاض، اسلام آباد، لندن او داسې نور دي.

۲– لوی ښارونه د نفوسو د ډېروالي، لویوالي، جغرافیایي موقعیت، دیني، فرهنګي،سیاسي، اقتصادي او سوداګریز ارزښت له نظره اهمیت لري.

۳–لوی ښارونه علمي ، فرهنګي، ورزشي او سیاحتي ډېر مرکزونه لري.

## اضافي معلومات

### د نړۍ لوی ښارونه

په نړۍ کې هم لوی ښارونه شته، چې ځینې یې د مذهبي عقیدې له پلوه اوځینې نور یې هم د ډېرو نفوسو، صنایعو او سوداګرۍ له پلوه اهمیت لري. لکه: مکه معظمه، مدینه منوره، بیت المقدس، او واتیکان د عقیدې له پلوه او د امریکې په متحدو ایالاتو کې نیویارك، په جاپان کې توکیو، په انګلستان کې لندن، په روسیه کې مسکو، په هند کې بمبیي، په چین کې بیجن (پیکنګ) او په اندونیزیا کې جاکارتا د نفوسو، صنایعو او سودا ګرۍ له پلوه ډېر اهمیت لري .

**(شلم) لوست**

وخت : یو درسي ساعت

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | زموږ هېواد افغانستان |
| **عمومي موخه** | زده کوونکي دې د خپل هېواد افغانستان په هکله معلومات حاصل کړي. |
| **پوهنیزې ، مهارتی او ذهنیتي موخې.** | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>• خپل هیواد افغانستان ښه وپیژني.<br>• د خپل هیواد افغانستان په هکله معلومات ورکړای شي.<br>• باوري شي چې د وطن سره مینه د ټولوارزښتونو څخه پورته ده . |
| **د تدریس لارې چارې** | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| **د لوست اړین او مرستندویه توکي** | کتاب، تخته، تباشیر،انځورونه ... |
| **د ارزونې لارې چارې** | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>– دلوست دکتاب په نقشه کې څه وینئ؟<br>– د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>– د لوست متن پرلوړ آواز لولي.<br>– وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>– زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحگانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>– کوم لغتونه او اصطلاحگانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>– لوست تشریح کوي.<br>– له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي. | – زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>– د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>– په غور سره غوږ نیسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– کوم لغتونه او اصطلاح گانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– په غور سره غوږ نیسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي | ۴۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| - زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې زموږ د ګران هيواد افغانستان په اړه بحث وکړئ .<br>- د ارزونې په موخه دلوست له پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او دې کورنۍ دنده ورکړي. | - په ډلو ويشل کيږي او د ښوونکي له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي اوله لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- زموږ د هېواد سهيلی او شمال ختيځې سيمې ډېر ځنګلونه لري.

۲- افغانستان د اوسپنې، سروزرو، سپينو زرو(نقرې)، نفتو، ګاز، د ډبرو سکرو، مسو او داسې نورو پرېمانه زېرمې او کانونه لري.

۳-آزاد ځواب

## اضافي معلومات

**زموږ هېواد افغانستان**

زموږ هيواد ر سمي نوم د افغانستان اسلامي جمهوريت دی او په سويلې اسيا کې له هرې خوا څخه په وچه پورې تړلی هېواد دی.

افغانستان ،۶۵۲ زره کيلو متر مربع پراخوالی لري، د نړۍ يوڅلويښتم پراخه هېواد دی، نفوس يې په۱۳۹۲ هجری شمسی کې له ۳۱ ميليونو وګړو څخه ډېر اټکل شوی و، چې په نړۍ کې د نفوس له اړخه دوه څلويښتم هېواد کې راځي اسلام يې رسمي دين دی. زموږ هيواد افغانستان پنځه زره کلن تاريخ لري . آريايان لومړني قومونه وو چې په دې سيمه کې ميشت وو او د يوه تمدن اساس يې په ام البلاد يا اوسنی بلخ کې کيښود.

## (یوویشتم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | زموږ ملي بیرغ |
| عمومي موخه | د ملي بیرغ سره د زده کوونکو بلدتیا. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکی دې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>• د ملي بیرغ اهمیت او د رنګونو د مفهوم سره به بلد شي.<br>• د ملي بیرغ د اهمیت او رنګونود مفهوم په اړه به معلومات ورکړای شي.<br>• د هیواد د ملي بیرغ سره به یې مینه پیدا شي. |
| د تدریس لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر،انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>تاسو په ملي بیرغ کې څه وینئ؟ | - زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي. | ۴۵ دقیقې |
| - د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي. | - د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي. | |
| - د لوست متن پرلوړ اواز لولي. | - په غور سره غوږ نیسي. | |
| - وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| -زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره یې ولیکي. | - له لارښوونې سره عمل کوي. | |
| -کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي. | - کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |
| - لوست تشریح کوي. | - په غور سره غوږ نیسي. | |
| - له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د ملي بیرغ د رنګونو په اړه خبرې | - په ډلووېشل کیږي او د ښوونکي له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

| | | |
|---|---|---|
| وکړي.<br>- د ارزونې په موخه دلوست له پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او کورنۍ دندې ته د زده کوونکي پام واړوي. | - ځوابونه ورکوي.<br><br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- زموږ د ګران هیواد افغانستان ملي بیرغ درې(تور، سور او زرغون) رنګونه لري.

۲- زرغون رنګ د زرغونتیا، خپلواکۍ او آبادۍ نښه ده.

۳- د افغانستان ملي نښان: محراب او منبر دی چې په سپین رنګ سره د ملي بیرغ په منځنۍ برخه کې ځای لري.

## اضافي معلومات

### ملي بیرغ

بیرغ د یوې ډلې، ګوند او یا د یو هېواد نښان دی چې زیاتره د ټوټې یا د کاغذ پرمخ په رنګه بڼه برابرېږي. پخوا به بیرغ په جنګونو کې د یووالي او پیژندنې نښه ګڼل کېده.

په قبایلو کې به د بیرغ د کارونې مخینه که په جګړه اویاکه په سوله کې، لرغونې زمانې ته ورګرځي. څرنګه چې د تاریخي سرچینو څخه معلومېږي، د ختیځ او لویدیځ بېلابېلو تمدنونو له بیرغ څخه ګټه اخستله. خو په ژوره توګه معلومه نه ده چې لومړی ځل له بیرغ څخه چا او په کوم وخت کې استفاده کړې ده. خو دا چې بیرغ د لښکر د یووالي نښه وه، د مقابل لوري د جنګي روحیې د کمزوري کولو لپاره به د بیرغچي له منځه وړل او د بیرغ پر ځمکه راغورځول د دښمن یوه مهمه مو خه وه، په ډېرو جګړو کې به یوهم مهم منصب بیرغ داري وه، ځکه چې بیرغ په عمل کې د یووالي نښه او شعار و، د بېلګې په ډول، هرکله چې به بیرغ د بیرغچي له لاسه غورځیده د لښکر لپاره به یو ډول ماتې او ګډوډي ګڼل کیدله، د تاریخ په اوږدو کې زموږ هیواد د ملي یووالي، خپلواکۍ، استقلال او د ځمکنۍ بشپړتیا نښه ده، ملي بیرغ ته درناوی کوو او د هغې ساتنه کوو.

## (دوه ویشتم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | دولتي اداري |
| عمومي موخه | له دولتي ادارو سره د زده کوونکو بلدتیا. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکی دې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>• د هېواد له دولتي ادارو سره به بلد شي.<br>• د دولتي ادارو دندې به بیان کړای شي.<br>• د هېواد د دولتي ادارو په وړاندې به مثبت ذهنیت پیدا کړي. |
| د تدریس لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر،انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي: | | ۴۵ دقیقې |
| - ستاسو په آند دولتي اداري د څه شي په موخه جوړې شوي دي؟ | - زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي. | |
| - د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي. | - د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي. | |
| - د لوست متن پرلوړ آواز لولي. | - په غور سره غوږ نیسي. | |
| - وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| -زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګاني چې پرې نه پوهیږي له ځان سره یې ولیکي. | - له لارښوونې سره عمل کوي. | |
| -کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي. | - کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |
| - لوست تشریح کوي. | - زده کوونکي په غور سره غوږ نیسي. | |

| | | |
|---|---|---|
| –له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي. | – له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| – زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د دولتي ادارو په اړه خبرې وکړي. | – په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| – د ارزونې په موخه دلوست له پوښتنو څخه پوښتنې کوي. | – ځوابونه ورکوي. | |
| – لوست دې رالنډ کړي او کورنی دنده دې ورکړي. | – د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱– هرهیواد د نظم د ټینګښت، د خلکو د خدمت، د اړیکو د ساتلو او د نورو کارونو د سرته رسولو لپاره حکومت او ادارو ته اړتیا لري.

۲– د هر وزارت استازي په ولایتونو کې د ریاست او په ولسوالیو کې د مدیریت په نومونو کارونه کوي.

۳– چې د هغې کارکوونکي په مسؤولیت، صداقت او ایمانداری خپلې دندې سرته ورسوي.

## اضافي معلومات

**دولتي ادارې**

**د مدیریت دندې**: د مدیریت دندې په لاندې ډول رالنډېږو:

**۱– پلان جوړول:** د دندې ټاکنه او هغې ته د رسیدلو لپاره تصمیم نیول، د موخې ټاکل او د راتلونکو چارو لپاره د یوې مناسبې کړنلارې جوړول دي. او کوم واټن چې موږ غواړو خپلې موخې ته ورسیږو هغه لنډوي یاپې له منځه وړي.

**۲– تنظیمول:** د یوې ادارې د بري پیلامه د پلان جوړول دي.د تنظیمولو برنامه یا پلان په واقعیت بدلوي او ټاکل شویو موخو ته حقیقت وربښي.

**۳– لارښوونه:** لارښوونه د موخو د ټاکلو او هغو ته د رسېدلو لپاره پر افرادو اغیز کوي. رهبران، هغه کسان چې د رهبر په نوم کار کوي، نورو ته لارښوونه کوي، هڅوي یې او پوهه ورکوي.

**۴– کنټرول:** هغه ډول فعالیتونه دي چې په لازمو شرایطو کې د دندو د ترسره کولو په بهیرکې موخو ته د رسېدلو لپاره له مخکې ټاکل شوي وي.

د کنټرول بهیر په څلورو مرحلو ویشلی شو:

د یوه کار د معیار ټاکل، د کار کچه معلومول، د اصلاحي اقدام لپاره د ټاکلو معیارونو سره د کار مقایسه یا پرتله کول.



**(درویشتم) لوست**

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرليکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **ترافيکي قوانين** |
| **عمومي موخه** | **د ترافيکي قوانينو سره د زده کوونکو بلدتيا.** |
| **پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې.** | زده کوونکی دې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي.<br>• ترافيکي قوانين به وپيژني.<br>• ترافيکي قوانين او ترافيکي اشارې به بيان کړای شي.<br>• ترافيکي قوانين به په پام کې ونيسي. |
| **د تدريس لارې چارې** | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| **د لوست اړين او مرستندويه توکي** | کتاب، تخته، تباشير،انځورونه ... |
| **د ارزونې لارې چارې** | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- کله مو فکر کړی دی، په ښارکې د خلکو او د لاريو د تګ راتګ لپاره څه شي ته اړتيا ده؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br><br>-د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>-زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګاني چې پرې نه پوهيږي له ځان سره يې وليکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>-له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی | <br><br><br>- زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br><br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br><br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- له لارښوونې سره عمل کوي.<br><br><br>- کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غورسره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي. | **۴۵ دقيقې** |

| | | |
|---|---|---|
| هم لوست تشریح کړي.<br>- د ښوونکي په مرسته یو زده کوونکي په ټولګي کې د ترافیکي څراغونو په پام کې نیولو سره پرسرک باندې د تېریدلو طریقه تمثیل کړي.<br>- د ارزونې په موخه دلوست له پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او کورنی دنده دې ورکړي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br><br><br>- ځوابونه ورکوي.<br><br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- د ترافیکي قوانینو مرعاتول د تلو راتلو د آسانی، د ترافیکي پېښو او د ګڼې ګونې د مخنیوي لامل کېږي.

۲- د څراغ شین رنګ، د روانېدلو او له سرک څخه د تېریدلو اشاره ده.

۳- سور، زېړ او شین.

## اضافي معلومات

### ترافیکی قوانین

د ترافیک تعریف: پرسرک باندې د انسانانو، څارویو، او د نقلیه وسایطو هرډول تلل، راتلل او درېدل ترافیک ګڼل کېږي، ترافیک په دریو برخو ویشل کېږي:

۱- ځمکنی ترافیک.

۲- سمندري ترافیک.

۳- هوایي ترافیک.

د ترافیک د پولیسو دنده د امن او نظم ټینګښت، د ترافیکو د بهیر تنظیم، د ترافیکي پېښو مخنیوی او د ترافیکي پېښو او خطرونو څخه د خلکو د ځان او مال ساتل دي، چې دا دنده په بشپړه توګه د لارې د ترافیکي قوانینو سره سمه سرته رسوي او د هېواد د بچیانو د خبرتیا د کچې د پورته کولو لپاره یې په ښوونځیو او ترانسپورتي ادارو کې ډېر ګټور کارونه تر سره کړي او د ترافیکي قیمتي اسنادو د خرڅون، له لارې د ټکس محصول، د موټر د جوازسیر، د ډریورۍ له اجازه لیک څخه د پام وړ عواید ترلاسه کوي او د دولت خزانې ته یې سپاري.

## (څلورویشتم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | د ښاري چاپېريال ساتنه |
| عمومي موخه | له ښاري چاپېريال ساتنې سره د زده کوونکو بلدتیا. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکی دې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي.<br>• د ښاري چاپيريال ساتنې په څرنګوالي پوه شي.<br>• د ښاري چاپيريال ساتنې په اړه به توضيحات ورکړای شي.<br>• د ښاري چاپيريال د پاک ساتلو سره به مينه پيدا کړي. |
| د تدريس لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير،انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په فکر، د ژوند د چاپيريال لپاره د ونو او ځنګلونو شتون څه ګټې لري؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ آواز لولي.<br>- وروسته خو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره وليکي.<br>- کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی | - زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره عمل کوي.<br>- کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵ دقيقې |

| | | |
|---|---|---|
| هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو باندې وېشي، او لارښوونه ورته کوي، چې د چاپېریال د پاکوالي او سمسورتیا په اړه خبرې سره وکړي.<br>- د ارزونې په موخه دلوست له پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې را لنډ کړي او کورنۍ دنده دې ورکړي. | - په ډلو ویشل کېږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډېز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- د ښار پاک ساتل او نظافت د ښاروالۍ دنده ده.

۲- د خپل کور او د نورو د کورونو په خواکې د خزلو له اچولو څخه باید ډډه وکړو

۳- د اوبو، لرګیو او د سون د نورو توکو ډېر لګښت د خزلو او کثافاتو او د ډېرو ناروغیو لامل ګرځي.

## اضافي معلومات

د ښاري چاپېریال ساتنه هغه کوښښ ته ویل کېږي چې د انسانانو او د ژوند د چاپیریال د پاک ساتلو لپاره په شخصي، سازماني یا دولتي کچو د طبیعي چاپیریال ساتنه کوي. په ۱۹۶۰ زکال کې د ژوند د چاپیریال فعاله خوځښتونه رامنځته شول چې په دې برخه کې له ډېرو مسایلو څخه معلومات لري. د ژوند د چاپیریال پرمخ د انسانانو د فعالیتونو د اغیز په اړه کوم توافق شتون نه لري او حفاظتي کارونو ته کله کله ګوته نیول کېږي. علمي اداري اوس اوس د پوهنیزو دورو وړاندیزونه کوي، لکه: د ژوند د چاپیریال مطالعه کول، د چاپیریال مدیریت او د ژوند د چاپیریال مهندسي چې د ژوند د چاپیریال د ساتلو طریقه او تاریخچه ورښیي. د ژوند چاپیریال ساتل د انسانانو بېلابېلو فعالیتونو ته په کتلو پورې اړه لري.

د ژوند د چاپیریال ساتل پردریو فکتورونو (عاملونو) پورې تړلي دی: د ژوند د چاپیریال قوانین، اخلاق او ښوونه او روزنه. د دغو دریو عاملونو (فکتورنو ) هریو هم د نړیوالو تصمیمونو په کچه او هم د شخصي او رفتاري ارزښتونو په کچه د ژوند پر چاپیریال باندې اغیزکوي. د دې لپاره چې د ژوند د چاپیریال ساتنه په حقیقت بدله شي، اړینه ده چې هېوادونه په دې برخه کې پرمختګ وکړي او د ژوند د چاپیریال په اړه تصمیمونه ونیسي.

**پنځه وېشتم) لوست**

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | څلور اصلي خواوې |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د څلورو اصلي خواو په هکله معلومات حاصل کړي. |
| پوهنيزې ، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>• د څلور اصلي خواوو سره به بلد شي.<br>• څېلې څلور خواوې دې وښيي او نومونه دې واخلي.<br>• د لمرد را ختلو د لوري پر اساس دې د نورو خواوو نومونه واخلي.<br>• د څلورو خواو د ټاکلو سره دې مينه پيدا کړي. |
| د تدريس لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير،انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په اند، دغه انځور کې څه ليدل کيږي؟<br>- د لوست سرليک پر تخته ليکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې دلوست انځورونه په ځير سره وګوري او اصلي خواوې دې په هغه کې تشخيص کړې.<br>- د لوست متن پرلوړ آواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>-زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره يې وليکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ | - زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي،انځورونه په ځير ګوري او په هکله يي نظر ورکوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې | ۴۵ دقيقې |

| | | |
|---|---|---|
| وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>- له ځو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- ښوونکی دې زده کوونکي له ټولګي څخه د ښونځي انګړته يوسي لومړی دی په خپله څلور اصلي خواوي او وروسته دي زده کوونکي په ډلوکي تمثيل کړي.<br>- د ارزونې په موخه د لوست له پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دي رالنډ کړي او د لوست د پای له پوښتنو څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- ځوابونه ورکوي.<br><br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱-اصلي څلور خواوې، له ختيځ، لوېديځ، شمال او سوېل څخه عبارت دي.

۲- انسانان د خواوو د ټاکلو لپاره له ختيځ او لويديځو خواوو څخه ډېره ګټه اخلي.

۳- هر کله چې د لمر راختلو لوري ته مخامخ ودريږو، مخې ته موختيځ شاته به مو لوېديځ، چپ لاس ته به مو شمال او ښي لاس ته به مو سويل وي.

## اضافي معلومات

### څلور اصلي خواوې

ټول پوهيږو چې لمر تل له يوې خوا راخيژي او بلې خواته لوېږي. د لمر راختو خوا ته ختيځ او پريوتو خوا ته يې لويديځ ويل کيږي. که موږ داسې ودريږو چې مخ مو د قبلې يعنې لويديځ خواته وي، نو شاته به مو ختيځ وي. زموږ ښی لاس شمال او کيڼ لاس مو سوېل راښيي په دې توګه زموږ بدن څلور اصلي خواوې لري. همدارنګه د ځمکې سطحه هم څلور اصلي او اساسي خواوې لري.

## شپږ وېشتم لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **څلورفرعي خواوې** |
| عمومي موخه | **زده کوونکي دې د څلورو فرعي خواو د ټاکلو په هکله معلومات حاصل کړي.** |
| پوهنیزې ، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>• څلور فرعي خواوې و پېژني.<br>• هغه لورې چې د دوو اصلي خواو ترمنځ موقعیت لري وښودلای شي.<br>• اصلي او فرعي خواوې یو له بل څخه بېلې او په تړولګي کې دې عملاً یو له بل څخه توپیر کړای شي.<br>• د څلورو فرعي خواو له ټاکلو سره مینه پیداکړي. |
| د تدریس لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر،انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- څه فکر کوئ، چې د کوټې څلور ګوټونه (کنجونه)کوم لوري راښيي.<br>- د لوست سرلیک پر تخته لیکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې دلوست انځورونه په ځیر سره وګوري ، اصلي او فرعي خواوې دې په هغه کې تشخیص کړي.<br>- د لوست متن پرلوړ آواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>-زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره یې ولیکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ | - زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي،انځورونه په ځیر ګوري او په هکله یې نظر ورکوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې | ۴۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br><br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي دې په ډلو وویشي او هره ډله دې د لوست په کتاب کې ورکړ شوې جملې په خپلو کتابچو کې بشپړې کړي .<br>- د ارزونې په موخه دلوست له پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او کورنۍ دندې ته زده کوونکي و هڅوي | ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br><br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- ځوابونه ورکوي.<br><br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱ - څلور فرعي خواوې له شمال ختیځ، شمال لوېدیځ، سوېل ختیځ او سوېل لوېدیځ څخه عبارت دي.

۲- د ختیځ او سویل اصلي خواو ترمنځ سوېل ختیځه فرعي خوا موقعیت لري .

۳- دلوېدیځ او شمال اصلي خواو ترمنځ شمال لوېدیځه فرعي خوا موقعیت لري .

## اضافي معلومات

### څلورفرعي خواوې

که ځیر شو، نو وینو چې د دوو اصلي خواوو، چې څنګ تر څنګه سره پرتې دي، یوه پراخه ساحه شته. دساري په توګه په یوه خونه کې څلور دیوالونه د خونې اصلي څلور خواوې ښیي، خو د همدې خونې څلور کونجونه چې هریو یې د دوو اصلي خواوو تر منځ پروت دی، فرعي خواوې یادیږي ، لکه شمال ختیځ، شمال لوېدیځ، سوېل ختیځ، سوېل لویدیځ.

## ( اوو ويشتم ) لوست

وخت : (يو درسي ساعت)

| سرليکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **نقشه او د هغې څلور خواوې** |
| عمومي موخه | **زده کوونکي دي د نقشې او دهغې له څلور خواوو په اړه معلومات پيدا کړي.** |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | • زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي:<br>• د نقشې پرمخ له سمتونو سره بلدشي.<br>• څلور خواوې به په نقشه کې وښودلای شي.<br>• باوري شي چې د جغرافيې د تدريس لپاره نقشه ډير اهميت لري. |
| د تدريس لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير،انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- نقشه و ګورئ او څلور خواوې يې و ښيئ؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>-د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>-زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره يې وليکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي. | - زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي. | ۴۵ دقيقې |

| | | |
|---|---|---|
| –له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>– زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې کوم خالي ځایونه چې د کتاب په فعالیت کې راغلي دي په مناسبو کلمو پوره کړي.<br>– د ارزونې لپاره دلوست دپای له پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>– لوست دې رالنډ کړي او کورنی دندې ته دې زده کوونکی ځیرکړي. | – له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– ځوابونه ورکوي.<br>– د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱– هره نقشه څلور خواوې لري چې عبارت دي له: شمال، سوېل ختيځ او لويديځ څخه.

۲– په هغو ټولو نقشوکې چې په کتاب کې دي يا پر ديوال ځوړندې شوې وي، د شمال لوری د نقشې پورته خواکې، دجنوب لوری لاندې خواته، ختيځ لوری ښي خواته او لويديځ لوری کيڼ لاسه ته موقعيت لري.

۳– فرعي لوري عبارت دي له: شمال ختيځ، شمال لويديځ ، سويل ختيځ او سويل لويديځ څخه.

## اضافي معلومات

**نقشه او د هغې څلور خواوې**

د نقشې په مرسته د ځمکې د سطحې او بيلا بيلو هيوادونو په اړه معلومات تر لاسه کولای شو . نقشه څو ډولونه لري لکه: طبيعی نقشه ، سياسي نقشه او نور. په نقشه کې مهمه مسله داده چې څلور خواوې په هغه ډول چې په ځمکه کې وي نه ليدل کيږی. که نقشه په ديوال باندی و ځړول شي پورتنی خوا يې شمال او کښتنی خوايې سويل ښيي ، ښی لاسته يې ختيځ لوری او کيڼ لاس ته يې لويديځ لوری ښيی. نقشه ځکه اهميت لري چې پرمخ يې د ټولې نړی ننداره کولای شو.

**(اته ویشتم ) لوست**

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرليکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **د افغانستان څلور خواوې** |
| **عمومي موخه** | **زده کوونکي دې د افغانستان د څلور خواوو په اړه معلومات لاسته راوړي.** |
| **پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې.** | **زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي:**<br>• د افغانستان څلور خواوو سره به بلدشي.<br>• د ګاونډيو هيوادونو نومونه واخستلای شي او په نقشه کې به يې وښودلای شي.<br>• له ګاونډيو هيوادونو سره د سوله ايز ژوند کولو مينه پيداکړي. |
| **د تدريس لارې چارې** | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| **د لوست اړين او مرستندويه توکي** | کتاب، تخته، تباشير،انځورونه ... |
| **د ارزونې لارې چارې** | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکي د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>– څه فکر کوئ چې د افغانستان په څلور خواوو کې کوم هيوادونه پراته دي؟<br>– د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>– د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>– وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>–زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره وليکي.<br>–کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکي دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>– لوست تشريح کوي.<br>–له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي. | – زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>– د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>– په غور سره غوږ نيسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>– په غور سره غوږ نيسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي. | **۴۵ دقيقې** |

| | | |
|---|---|---|
| - زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې دښی ګروپ هیوادونه دکېڼ ګروپ سره په خپلوکتابچو کې سره وصل کړي.<br>- د ارزونې په موخه دلوست له پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او کورنی دندی ته دی زده کوونکی ځیر کړي. | - په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- د(ج)ځواب سم دی.

۲- د افغانستان ګاونډې هیوادونه عبارت دی له : تاجکستان، ازبکستان، ترکمنستان، ایران، پاکستان او چین څخه.

۳- دچین هیواد زموږ د هیواد په شمال ختیځ کې پروت دی.

## اضافي معلومات

**د افغانستان څلور خواوې**

زموږ ګران هېواد افغانستان د آسیا لویې و چې په سویل کې پروت دی. لکه څنګه چې افغانستان دمنځنی اسیا او سوېلی اسیا هیوادونو د تګ راتګ په لاره پروت دی ، نوله دې پلوه ډیر د اهمیت وړده افغانستان د آسیا د شمال او سویل هېوادونو ترمنځ د پل حیثیت لري.

زموږ د هیواد مساحت (۶۵۲) زره کیلو متره مربع ده، سمندر ته لارنه لري. له دې کبله له سوداګریزو او اقتصادی ستونزو سره مخ ده. زموږ هیواد د نورو هیوادونو پرځیرګاونډی هیوادونه لري. چې په لاندې ډول معرفي کیږي. شمال لورته د تاجکستان ، از بکستان او ترکمنستان له جمهوریتونو ، جنوب او ختیځ لور ته یې، د پاکستان اسلامي جمهوري هیواد، او لویدیځ لور ته یې د ایران له اسلامي جمهوري او شمال ختیځ لوري ته یې د چین د خلکو له جمهوریت سره ګډه پوله لري.

**(نه وېشتم) لوست**

وخت : (يو درسي ساعت)

| سرليکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **زموږ د هېواد اداري وېش** |
| **عمومي موخه** | **زده کوونکي دې د هېواد د اداري وېش په اړه معلومات ترلاسه کړي.** |
| **پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې.** | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي:<br><br>• په نقشه کې د ولايتونو له موقعيت سره بلدشي.<br>• ولايتونه په سياسي نقشه کې و ښودلای شي.<br>• د هيواد پر څلورو خوا وو باندی پوه شي. |
| **د تدريس لارې چارې** | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| **د لوست اړين او مرستندويه توکي** | کتاب، تخته، تباشير،انځورونه ... |
| **د ارزونې لارې چارې** | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>– کله مو سوچ کړی چې افغانستان څو ولايتونه لري؟<br>– د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>–د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>– وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>–زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاگانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره يې وليکي.<br>–کوم لغتونه او اصطلاحگانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکي دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>– لوست تشريح کوي. | – زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>– د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>– په غور سره غوږ نيسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– کوم لغتونه او اصطلاح گانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>– په غور سره غوږ نيسي. | ۴۵ دقيقې |

| | | |
|---|---|---|
| –له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي. | – له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| – زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د سویلي ، ختیځو ، لویدیځو او مرکزي ولایتونو نومونه واخلي او د نقشې پرمخ یې وښیي. | – په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| – د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي. | – ځوابونه ورکوي. | |
| – لوست دې رالنډ کړي اوکورنۍ دندی ته زده کوونکی ځیرکړي. | – د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱– افغانستان ۳۴ ولایتونه لري.

۲– ولایتونه د والي له خوا اداره کیږي.

۳– د افغانستان پایتخت د کابل ښار دی.

## اضافي معلومات

**زموږ د هېواد اداري وېش**

د چارو د سمولو او د دندو د ښه سرته رسولو په موخه افغانستان پر ۳۴ ولایتونو ویشل شوی چې د هر ولایت په سر کې والي د چارو واگې په لاس کې لري. هر ولایت د ښې اداري لپاره پر ولسوالیو ویشل شوی دی . ځینې تاریخي ولایتونه لکه: هرات، کندهار، مزارشریف(بلخ) ننگرهار، غزنی، بامیان او نوردي. زموږ د هیواد پلازمینه یا مرکز د کابل ښکلی ښار دی.

## (دیرشم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **د افغانستان دین، ژبه او وګړي** |
| عمومي موخه | **زده کوونکي دې د افغانستان د دین ، ژبې او وګړو په اړه معلومات ترلاسه کړي.** |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي:<br>• د هیواد له دین ژبې او وګړو سره آشناشي.<br>• د هیواد د دین ژبې او وګړو ارزش بیان کړای شي.<br>• د هیواد د رسمي دین په توګه د اسلام د سپیڅلي دین او د هغه له لارښوونو سره مینه پیدا کړي. |
| د تدریس لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر،انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي: | | ۴۵ دقیقې |
| – ستاسو په اند، د افغانستان خلك په کومو ژبو خبرې کوي؟ | – زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي. | |
| – د نوي لوست سرلیك پرتخته لیکي. | – د نوي لوست سرلیك ته پام اړوي. | |
| –د لوست متن پرلوړ اواز لولي. | – په غور سره غوږ نیسي. | |
| – وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي. | – له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| –زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره يې ولیکي. | – له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| –کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي. | – کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |
| – تشریح کوي. | – په غور سره غوږ نیسي. | |
| | – له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| –له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی | – په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم | |

| | | |
|---|---|---|
| هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د افغانستان د دین او ژبو په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د کورنۍ دندی سپارښت زده کوونکوته کوي. | عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي | |

**د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱-زموږ د هیواد ژبې عبارت دي له : پښتو، دري، ازبکي، ترکمني، بلوڅي، پشه یي ، نورستاني، پامیري ، گجري او داسې نور چې له هغې جملې څخه پښتو او دري زموږ د هیواد رسمې ژبې دي.
۲- زموږ د هېواد خلك د دریم خلیفه (حضرت عثمان) (رض) په زمانه کې د اسلام پر دین مشرف شول.
۳- زموږ د هېواد د نفوسو شمیر دیرش ملیونه تنه دی. چې له بېلابېلو قومونو او ملتونو څخه د هندوانو او سکانو په شمول جوړ شوی دی.

## اضافي معلومات

**د افغانستان دین، ژبه او وګړي**

دین ژبه او نژاد د یو هیواد یا ملت د پیژند گلوۍ نښې وي. د افغانستان ډیر خلك مسلمانان دي. د اسلام دین نږدې ۱۴پیړۍ وړاندی په مکه معظمه کې زموږ د پیغمبر حضرت محمد (ص) له خوا رامنځ ته شو او اسلام د ددویم خلیفه حضرت عمر فاروق(رض) به مهال افغانستان ته راغی او د اسلام د درېم خلیفه حضرت عثمان(رض) په مهال د افغانستان خلك د اسلام په سپیڅلي دین مشرف شول. په افغانستان کې شاو خوا دیرش ژبی شته ، چې مهمې یې پښتو درې ، ازبکي، ترکمني او پشه یې او ځینې نور دي. که څه هم د نا امنیو له امله د هیواد دنفوسو د قیق شمیرتر اوسه پورې څرگند نه دی ، خو دمعلوماتو له مخې افغانستان د دیرشو ملیونو په شاو خواکې نفوس لري. د نفوس په باب دقیق معلومات ، چې له دیرشو ملیونو سر شمېرنه وروسته ترلاسه کیږي ، له هیواد سره مرسته کوي چې دقیق پلانونه ترلاس لاندې ونیسي.

## (یودیرشم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | د افغانستان غرونه |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د افغانستان د غرونو په هکله معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>• د افغانستان له غرونو سره اشناشي.<br>• د غرونو ارزښت بیان کړای شي.<br>• باوري شي چې د غرونو شتون د انسانانو په ژوند کې اغیز من دي. |
| د تدریس لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسې په اند، په افغانستان کې د غرونو شتون څه اهمیت لري؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته خو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>-زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاگانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره یې ولیکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحگانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او | - زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- کوم لغتونه او اصطلاح گانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي | ۴۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>-له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د غرونو د اهمیت په اړه خبرې وکړی.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او کورنی دندې ته زده کوونکي ځیر کړی. | په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- په یو هېواد کې د غرونو شتون ډېر اهمیت لري، د دې لپاره چې په دې سیمو کې هوا سړه وي او هلته واورې ورېږي.

۲- په غرونو کې د واورو شتون د اوبو زېرمې جوړوي. چې د پسرلي او اوړي په موسمونو کې هغه اوبه کیږي او د کرنیزو ځمکو د خړوبولو لپاره ورڅخه ګټه اخېستل کیږي.

۳- د هېواد د درې برخو څخه یوه برخه غرونو نیولې ده.

## اضافي معلومات

**د افغانستان غرونه**

د افغانستان غرونه یوازینی طبیعي پدیده ده چې د دې سیمې صحرایي اقلیم ته یې بدلون ورکړی او غرنیو اورښتونو ته یې لاره هواره کړې ده. د پامیر، هندوکش او نورو غرونو د لوړو سیمو واورو او کنګلونود اوبو حوضې منځ ته راوړي او د دې سبب شوی چې په هېواد کې کرنه پرمختګ وکړي او د غرونو لمنې زرغونې اوښېرازه شي.

افغانستان د استوا لاندې لوړ فشار په سیمه کې پروت دی که چېرې په هېواد کې دهندوکش د غرونو لړیو شتون نه درلودای ، نو زموږ هېواد به هم لکه: د ایران د لوط د صحرا او د سعودي عربستان د صحرا په شان به په شګلن او صحرایي اقلیمي سیمه به بدل شوی وی او دا ټول جوړښتونه او د بشري ژوندانه پرمختګونه به په سترګو نه لیدل کېده لکه څنګه چې مصر د نیل د سیند ډالي ګڼل کیږي، پر ځای به وې چې افغانستان د هندوکش ډالي وګڼو. یادونه وړه ده چې په غرنیو سیموکې ژوند کول د زیاتو طبعیي پیښو لکه دځمکې تیږو ، خاورو ،برف کوچونو خوییدونه او داسې نور دی له دی کبله د طبعیي پیښو د زیانونو د مخنوی لپاره لاندی ټکی په نظر کې ونیسو او زده کوونکي ور باندی و پوهوو.. په هغو سیمو کې چې هلته پخوا د ځمکې خوییدنه شوې وي او یا دخطر نښې شتون ولري د تیریدو په وخت کې باید د احتیاط نه کار واخستل شي.

د ځمکې د ښوییدنی او برف کوچونو د مخنوي لپاره د خطر په سیمو کې باید ونې کینبودل شي.

**(دوه دېرشم) لوست**

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **د افغانستان مشهورغرونه** |
| **عمومي موخه** | **زده کوونکي دې د هیواد د مشهورو غرونو په اړه معلومات حاصل کړي.** |
| **پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې.** | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>• د افغانستان د مشهورو غرونو سره به بلدشي.<br>• د افغانستان د مشهورو غرونو نومونه به واخيستلای شي.<br>• باوري شي چې په هېواد کې د غرونو شتون د ښې هوا، کانونو، اوبو او د زېرمو ښه سرچېنه ده. |
| **د تدریس لارې چارې** | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| **د لوست اړين او مرستندويه توکي** | کتاب، تخته، تباشير،انځورونه ... |
| **د ارزونې لارې چارې** | تحريري، تقريري... |

| **د ښوونکي فعاليتونه** | **د زده کوونکو فعاليتونه** | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>– ستاسې په اند، په افغانستان کې کوم غرونه مشهور دي؟<br>– د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>– د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>– وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>– زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره يې وليکي.<br>–کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکی يې هغه د تختې پرمخ وليکي او | – زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>– د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>– په غور سره غوږ نيسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې | ۴۵ دقيقې |

| | | |
|---|---|---|
| معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د هیواد د مشهورغرونو نومونه واخلي او په نقشه کې دې ښکاره کړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او کورنۍ دنده ورکړي. | ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱ – د هند وکش غرونه د شمال ختیځ څخه سوېل لوېدیځ په لوري غزېدلي دي او دسالنگ لویه لار له هغو څخه تېریږي.

۲– د بابا غر د افغانستان په مرکزي برخه کې موقعیت لري او د څړځایونو په درلودلو سره د څارویو د روزنې لپاره زیات اهمیت لري.

۳– سپین غر د پراخو او گڼو ځنگلونو د درلودلو له کبله زیات اهمیت لري .

## اضافي معلومات

**د افغانستان مشهورغرونه**

افغانستان یوغرنې هېواد دی چې ⅓ برخه یې یا د پراخوالي ۳۳سلنه یې غرونو نیولی ده که د یوې خوا غروونو د استوگنې او کرنې ځمکې نیولې دي خو د بلې خوا دهېواد د ترقی او پرمختگ سبب هم شوي دي. په غرونو کې کانونه، د واورو زېرمې، د اوبو سرچېنې او ښه هوا شتون لري. چې د هیواد په ښېرازی ، دچاپېریال او داقتصاد په ښه والي کې اغیز من دي.

د افغانستان مشهور غرونه د هندوکش، پامیر، بابا، سپین غر، تورغر، سلیمان غر، سفید کوه، سیاه کوه ا داسې نورو څخه عبارت دي. زیاتره غرونه د هېواد په ختیځو، شمال ختیځو، مرکزي، سوېلي او لویدیځو برخو کې موقعیت لري. د سالنگ تونل چې د جوړونې کار یې ۱۳۳۲ د لیندۍ د میاشتې په ۱۰مه نېټه پیل اود ۱۳۴۳ لمریز کال د سنبلې په میاشت کې د پخواني شوري اتحاد په مالي مرسته گټې اخېستنې ته وسپارل شو. د تونل اوږدوالی ۲۶۷۶ متره سور یې اووه نیم متره او لوړوالی یې اووه متره دی . دا تونل د لوېدیځ هندوکش غره په سالنگ غاښې کې د سمندر د مخ څخه ۳۳۶۰ متره لوړ جوړ شوی دی . دا تونل شمالي ولایتونه د سوېلي ولایتونه سره نښلوي.

## (درې دېرشم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرليکونه | د مطلبونو شرح |
| --- | --- |
| د لوست موضوع | د افغانستان سيندونه |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د افغانستان د سېندونو په هکله معلومات حاصل کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>• د افغانستان د سېندونو سره به بلدشي.<br>• د سيندونو له اوبو څخه بنه ګټه ترلاسه کړای شي.<br>• باوري شي چې د سېندونو د اوبو څخه زياتې اقتصادي ګټې اخېستل کېدای شي . |
| د تدريس لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير،انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسې په اند، سيندونه څرنګه منځ ته راځي؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي. | - زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي. | ۴۵ دقيقې |
| - وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره يې وليکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي. | |

| | | |
|---|---|---|
| –له ځو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>– زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د هیواد دسیندونو د اهمیت په اړه بحث وکړي.<br>– د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>– لوست دې رالنډ کړي او کورنی دنده ورکړي. | – له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– ځوابونه ورکوي.<br>– د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱ – د سیندونو اوبه په کرنې، مالدارۍ او د نورو انساني اړتیاوو په پوره کولو کې مهم رول لري. هغه سېندونه چې دواورو د ذخیرو او د غرونو د لوړو برخو څخه سر چېنه اخلي د کال په اوړدو کې په ځانګړې ډول په اوړي کې زیاتې اوبه لري.

۲– د سېندونو د اوبو څخه د کرنې برسېره د برېښنا په تولید، د ژرندو په ګرځولو، د کبانو په نیولو اوتربیه کولو، د دښتو په خړو بولو او د ژوند د چاپېریال په سمسورتیا کې ترې ګټه اخېستل کیږي.

۳– د ا فغانستان مشهور سیندونه د آمو، کابل، هلمند، هریرود ، مرغاب او داسې نورو څخه عبارت دي.

## اضافي معلومات

**د افغانستان سیندونه**

د افغانستان د اوبو سرچینې او حوضې د هندوکش او نورو غرونو لوړې سیمې په ځانګړې ډول د واخان پامیر، هندوکش، دبابا او نورو غرونو همېشنې واورې چې یو دبل دپاسه ډېرې کیږي ، تشکیلوي. په پسرلي او اوړي کې ویلې کیږي او په مختلفو سیمو کې رواني اوبه منځ ته را وړي. نو ځکه افغانستان زیاتې او پریمانه اوبه لري.
په ژمي او پسرلي کې زیات اورښتونه او واورې د دې لامل کیږي چې د پسرلي او د اوړي د موسم په لومړیو کې د اوبو حجم زیات او سېلابي شي، په ځمکو کې د ونو او ځنګلونو د نه شتون له کبله د سیندونو د شاوخوا حاصل خېزه ځمکې د اوبو دسطحې د لوړېدو په سبب و یجاړې شي .
د طبعیي حادثاتو په وخت کې لکه سیلاب او داسی نور باید ټولو خلکو سره خصوصاً له سپینږیرو او ماشومانو سره مرسته وشي . د سیلاب د راتلو په وخت کې خلك باید امن ځایونو ، جیګو سیمو او له سیندونو څخه لرې ځایونو ته ولیږدول شي.

### (څلور دېرشم) لوست

وخت (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **د افغانستان مشهور سیندونه** |
| عمومي موخه | **زده کوونکي دې د افغانستان د مشهورو سېندونو په هکله معلومات حاصل کړي.** |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسېږي:<br>• د افغانستان د مشهورو سېندونو سره به بلدشي.<br>• د افغانستان د مهمو او مشهوروسېندونو نومونه به واخیستلای شي.<br>• د افغانستان د مشهورو سیندونو پراهمیت به پوه شي. |
| د تدریس لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر،انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>– ستاسې په اند، زموږ د هېواد له سیندونو څخه سمه ګټه اخیستل شوې ده؟<br>– د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>– د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>– وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>– زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره یې ولیکي.<br>–کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي. | – زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>– د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>– په غور سره غوږ نیسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه | ۴۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| - لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ووېشي او لارښوونه ور ته کوي چې د نقشې له مخې د افغانستان د یوه سیند په هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ .<br>- د ارزونې په موخه دې د لوست د پای پوښتنې طرحه کړي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او کورنی دنده ورکړي . | دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي . | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- د هلمند سیند د یغمان دغره د لوېدیځې برخې څخه سرچینه اخلي او د هلمند په هامون کې تویږي.

۲- د آمو سیند د کوچني پامیر (د زرقول له جهیل) څخه سرچینه اخلي او د ارال په جهیل کې تویږي.

۳- هغه بندونه چې د کابل پر سیند جوړ شوي دي له ماهیپر، نغلو، سروبي او درونټې څخه عبارت دي.

## اضافي معلومات

**د افغانستان مشهور سیندونه**

**د آموسیند**: د لرغونو زمانو راهیسې شهرت لري د هېواد په شمالي برخو کې د بلخ لرغونی مدنیت هم ددې سیند ترڅنګ منځ ته راغلی وه پخوانیو یونانیانو هغه د اکسوس oxus او عربانو د جیحون په نامه یاد کړی دی چې لومړنۍ سرچینه یې د پامیر، واخان او د زرکول د جهیل کنګلونه تشکیلوي.

**د هریرود سیند**: د هېواد په شمال لوېدیځه برخه کې په ځانګړي ډول په هرات کې د کرنیزو فعالیتونو او د نفوس د مېشت کېدنې سبب شوی دی چې په اوږده لیکه د ختیځ څخه د لوېدیځ په لوري بهیږي اود لعل وسرجنګل د درو د لوړو برخو څخه سرچینه اخلي.د افغانستان او ایران په سرحدي پوله کې خپل تګ لوری شمال خواته بدلوي او د ترکمنستان به شګو کې وچیږي.

**د کابل سیند**: دپغمان دغره د اونۍ د کوتل څخه چې د سمندر له مخ څخه د ۳۵۰۰ متره لوړوالی لري او د کابل د لوېدیځ په سل کیلو مترۍ کې پروت دی سرچینه اخلي او د اټک په سیمه کې د سند سیند ته تویږي.

**د هلمند سیند**: د افغانستان ډېر اوږد سیند دی چې د هېواد سوېل لوېدیځ کې بهیږي او دسرچینې څخه ترپایه د هېواد په دننه کې بهیږي.

## پنځه دېرشم لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | لویې وچې |
| عمومي موخه | زده کوونکی دې د نړۍ د لویو وچو په اړه معلومات حاصل کړي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکی دې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي:<br>• د نړۍ له لویو وچو سره به آشناشي.<br>• لویې و چې به په نقشه کې و ښودلای شي.<br>• باور پیداکړي چې په نړۍ کې شپږ لویې وچې شته دي. |
| د تدریس لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر،انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>– ستاسو په اند ، لویه وچه څه ته وایي ؟<br>– د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>– د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>– وروسته خو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>– زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاگانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره ولیکي.<br>– کوم لغتونه او اصطلاحگانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکي دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>– لوست تشریح کوي.<br>– له خو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي. | – زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>– د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>– په غور سره غوږ نیسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– کوم لغتونه او اصطلاحگانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– په غور سره غوږ نیسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| - زده کوونکي په ډلو ویشي او لاربښوونه ورته کوي چې له نقشې څخه په ګټه اخستنې د لویو وچو موقعیت وښیي.<br>- د ارزونې په موخه دلوست له پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او کورنی دنده ورکړي. | - په ډلو ویشل کیږي او له لاربښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لاربښوونې سره سم عمل کوي | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- زموږ هېواد د اسیا په لویه و چه کې پروت دی.
۲- انسانان د انتارکتیکا په لویه وچه کې له دې امله چې ډېره سړه او کنګل ده په عادي توګه ژوند نشي کولای.

## اضافي معلومات

**لویې وچې**

نړۍ له اوبو او وچې څخه جوړه شوې ده، د ځمکی د کرې ۲پر۳ برخه یې او بو نیولې او پاتی ۱پر۳ برخه یې وچه ده. د ځمکې وچه پرشپږو لویو برخو ویشل شوې ده، چې هرې برخې ته یې لویه و چه یا براعظم ویل کیږی. لویې وچې له آسیا ، اروپا، امریکا، افریقا، استرالیا او اقیانوسیه او انتارکتیکا څخه عبارت دي.
زموږ ګران هیواد افغانستان د اسیا د لویې و چې په سویل کې پروت او وچې سره تړلی دی. په نړۍ کې څلوېښت هیوادونه په وچه کې پراته او سمندر ته لاره نه لري. چې ۱۴ هیوادونه یې د افریقا په لویه وچه کې، ۱۲ هیوادونه یې په اروپا کې ، ۲ یې په امریکا او ۱۲ یې د آسیا په لویه و چه کې دي.

## (شپږدیرشم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | د آسیا لویه وچه |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د آسیا د لوې وچې په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>• د آسیا د لویې وچې سره آشنا شي.<br>• د آسیا لویه وچه به په نقشه کې و ښودلای شي.<br>• باوري شي چې د آسیا لویه وچه د بشري تمدنونو د پیدایښت زانګو ده او د مسلمانانو سپیڅلي ښارونه هم دلته موقعیت لري. |
| د تدریس لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر،انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لومړنیو فعالیتونه له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>– څه فکر کوئ، چې د نړۍ ډیره لویه او د وګړو څه ډګه قاره کومه ده؟<br>– د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>– د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>– وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>–زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره یې ولیکي.<br>–کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکي دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>– لوست تشریح کوي. | – زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي.<br>– د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>– په غور سره غوږ نیسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– په غور سره غوږ نیسي. | ۴۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| –له خو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>– زده کوونکي په ډلو ویشي او لاربښوونه ورته کوي چې د آسیا د لوې وچې په اړه خبرې وکړي.<br>– د ارزونې په موخه دلوست له پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>– لوست دې رالنډ کړي او کورنۍ دنده ورکړي. | – له لاربښوونې سره سم عمل کوي.<br>– په ډلو ویشل کیږي او له لاربښوونې سره سم عمل کوي.<br>– ځوابونه ورکوي.<br>– د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لاربښوونې سره سم عمل کوي | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱– د آسیا لویه وچه د شمال خوا څخه په شمالي کنګل شوي سمندر، د جنوب لخوا څخه د هند په سمندر، د ختیځ له خوا څخه په آرام سمندر او د لویدیځ لخوا څخه د اروپا د لویې وچې سره نښتې ده.

۲–د اسیا ځینې هیوادونه له افغانستان، سعودي عربستان، هند، ایران، چین، پاکستان، ترکیې، روسیې او داسې نورو څخه عبارت دي.

۳– د آسیا په لویه وچه کې اقلیم په هره سیمه کې توپیر لري. د مثال په توګه هغه سیمې چې شمالي قطب ته نږدې دي سړه هوا ،جنوبي سیمې توده هوا او نورې برخې یې معتدله آب او هوا لري.

## اضافي معلومات

**د آسیا لویه وچه**

د آسیا لویه وچه تر ټولو لویه وچه ده چې له ۴۴ میلیونه کیلومتره مربع څخه زیات پراخوالی لري.

ډېر لوړ غرونه، ډېرې ټیټې ځمکې، مست او څپانده سیندونه د آسیا په لویه وچه کې پراته دي. له نیمایي څخه زیات یعنې نړۍ په سلو کې شپېته وګړي په آسیا کې ژوند کوي.

د آسیا لویه وچه د بشري تمدن زانګو ده خلک یې له بیلابیلو نژادونو څخه دي او اکثره وګړي یې د اسلام سپیڅلي دین پیروان دي.

## (اووه دیرشم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | د اروپا لویه وچه |
| عمومي موخه | زده کوونکي دي د اروپا د لويې وچې په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| (پوهنیزې ، مهارتی او ذهنيتي) موخې. | زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>• د اروپا له لويې وچې سره آشنا شي.<br>• د اروپا موقعيت په نقشه کې پيدا کړای شي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | • باوري شي چې د اروپا پرمختګ د هغو د خلکو د زيارونو او کوښښو پايله ده. |
| د تدريس لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي: | | ۴۵ دقيقې |
| - ستاسو په نظر د اروپا قاره د آسيا د لويې وچې کوم خواته پرته ده؟ | - زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکوي. | |
| - د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي. | - د نوي لوست سرليک ته پام اړوي. | |
| - د لوست متن پرلوړ اواز لولي. | - په غور سره غوږ نيسي. | |
| - وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| -زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاګانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره يې وليکي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| -کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي. | - کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې وليکي. | |
| - لوست تشريح کوي. | - په غور سره غوږ نيسي. | |

| | | |
|---|---|---|
| – له خو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>– زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې د اروپا د لوې وچې په اړه خبرې وکړئ.<br>– د ارزونې په موخه دلوست له پوښتنو څخه پوښتنې کوي.<br>– لوست دې رالنډ کړي او کورنی دنده ورکړي. | – له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– ځوابونه ورکوي.<br>– د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱– د جغرافيې ځينې پوهان اروپا او آسيا د يوريشيا په نامه يادوي.

۲– د اروپا ختيځ خواته د آسيا لويه وچه پرته ده.

۳– اروپايي دري مهم هيوادونه: انګلستان، آلمان او فرانسه دي.

## اضافي معلومات

**د اروپا لويه وچه**

که څه هم د اروپا لويه وچه د لويوالي له مخې کوچنۍ قاره ده. خو د وګړو او پرمختګ له نظره ډيره مهمه قاره ده، لکه څنګه چې اروپا د آسيا د لويې وچې په ادامه پرته ده له دې کبله ځينې د جغرافيې پوهان دا دواړه قارې د يوريشيا په نامه يادوي. د دې لويې وچې اکثريت خلك د عيسوي دين پيروان دي. د اروپا او آسيا ترمنځ پوله د يورال غرونه، د يورال سيند، د قفقاز غرونه او تور سمندرګی دی د اروپا پراخوالی لس مليونه کيلو متره مربع دی، چې دنړۍ يوولس په سلوکې وګړي جوړوی که څه هم د اروپا پراخوالی لږ دی خو د وګړو د ګڼوالي په حساب وروسته له اسيا څخه په دويمه درجه دی. څرنګه چې اروپا په شمالی معتدله سيمه کې موقعيت لری نو اروپا دشنی قاری په نامه هم يادوی اروپا ډير ټاپوګان لري چې لوی ټاپو ګان يې د بريتانيي او آيسلند ټاپو ګان دي. يو شمير دنړی مهم او تاريخي ښارونه په اروپا کې موقعيت لري لکه: لندن، روم، مسکو، آتن او برلين.

